تحریری کورس مناظرہ

# تشریحات النابغة
# فی
# حل المسائل المختلفة

من ملفوظات

شیخ الاسلام سلطان المناظرین نابغۃ العصر شیخ القرآن والحدیث شہید ابن شہید

ابوالعزیز غلام حضرت غلام الحنفی شہید عرف نابغۃ تقبلہ اللہ

محرر ومرتب

**سید محمد ثواب**

ابن سید اکاخیل باچا صاحب

اولہ حصہ

ناشر

مدرسۃ حذیفۃ الاحناف

Scanned by CamScanner

بِسمِ اللهِ الَّرحمنِ الَّرحيم

# از تشريحات النابغه

## مسئلة
## الوجد على الصوفية

Scanned by CamScanner

# مسئلة الوجد على الصوفية :

# التحقيق في الوجد على الصوفية :

اعوذ بالله من الشيطن الرجيم بسم الله الرحمن الرحيم ﴿ فَلَمَّا تَجَلَّىٰ رَبُّهُۥ لِلْجَبَلِ جَعَلَهُۥ دَكًّا وَخَرَّ موسَىٰ صَعِقًا ﴾

بله زيرِ بحث مسئله ، مسئله د وجد ده على الصوفية چې په دې مسئله کې يو اځې خصم او مخالفين د اهل السنة والجماعة منکرين نه دي بلکې د نه مطالعې له وجې نه زمونږ ډير حنفي ورونه او حنفي علماء او طالبان هغه په صوفيه کرامو باندې او بالخصوص په سيفي حضراتو باندې د وجد په باب کې اعتراضات لري نو دا ډيره ضرور کنمه چې تفصيلي بيان شي ځکه لوي اعتراضات د باړي حضرت صاحب باندې موافقين يې کوي که مخالفين يې کوي نو مخالفين خو هسې هم په عقائدو کې فرق لري .

خو احناف اهل السنة والجماعة علماء او طالبان ورونه چې هغوي مخالفت کوي نو د هغوي د مخالفت دوه لوي وجهې دي يو دا اعتراض کوي چې د باړي حضرت صاحب تبليغيانو ته کافر وايي او دويم دا اعتراض کوي چې د باړي حضرت صاحب مريدان ټوپونه وهي دا دوه غټ اعتراضونه دي په سيفيانو باندې .

مسئله د تکفير د تبليغي جماعت هغه غلط فهمي شوې ده د باړي حضرت صاحب تبليغي جماعت د يو شخص متعلق دا الفاظ نه دي صادر کړې بلکې هغه د جبر عقيده چې له الله نه د کيدو يقين او د مخلوق نه د نه کيدو يقين داد جبريه وو عقيده ده په دې باندې به يې خپلو مريدانو متعلقينو ته ځه الفاظ ويل او بعضې علماء متکلمين فقهاء جبريه وو ته کافر وايي هغه نصوص به يې پيش کول نو خبره د هغه په خپل ځای باندې روغه وه دا خو تبليغي جماعت ته په کار دي چې د خپلې عقيدې اصلاح وکړي او علماو ته په کار دي چې له دې غلط پرچار نه دې منع کړي .

او هر چې مسئله د وجد على الصوفية ده په دې کې هم حق د سيفي حضراتو سره دي او کوم چې منکرين انکار کوي هغوي خو له ډيرو څيزونو نه انکار کوي او کوم چې احناف ورونه مخالف دي نو د هغوي لپاره مونږ عذر دا وايو چې دوي مطالعه پوره نه ده کړي دوي



Scanned by CamScanner

اقوال د فقهاو مفسرينو سم نه دي كتلې اكثر فقهاء په اتڼ باندې په ګډا ګانو د سرو باندې رد كوي څكه رقص د نارينه لپاره حرام دي خاصتاً هغه رقص چې په هغې كې تكسر او تخنث يعنې مات مات كيدل او د يوې ډمې جينې غوندې تاويدل راتاويدل هغه طرزونه كول نو په دې باندې خو اتفاق دي بيننا وبين الخصم چې ګډا ګانې او اتڼونه دا جائز نه دي .

خو مقصد د فقهاو دلته د صوفيه وو په مجالسو باندې ردود نه دي هغه خو عام هلكان را غونډ شي يو ورته تنبل وهي او نور ورته ګډيږي او يا دا هيجړا ګان ګډوي دې وو باندې فقهاو رد كړې دي .

نو بعضې كم فهم يا ټول عبارت نه ګوري او يا كه يې ګوري ضد كوي د دغه نصوص د فقهاو را واخلي چې رقص حرام دي نو رقص ته ځا جائز ويلې دي د اتڼ رقص د هيجړا ګډول تنبل او منګي وهل او هغې ته د ډمې په شان مات مات كيدل او طرزونه كول دا كوم فقيه جائز كړې دي كله د باړي حضرت صاحب دد دې د جواز فتوى وركړې ده **اما رقص الصوفية في مجالس الذكر بمحض الدوران بدون الاختيار .**

دا جدا مسئله ده فقهاو د دغه مسئله زير بحث نه ده ګرځولې صوفي باندې مجلس د ذكر كې يو دوران راشي حالت پرې راشي پاڅيږي تاو شي او د صوفي دغه رقص به خالي له تكسر او تخنث نه وي دې كې به د ډمې طرز نه وي او كه وي دې كې به دخل شيطاني وي يا دا محض دوران دي حالت يې غيرِ اختياري وي .

اضطراب او اضطرار وي نو د دغه لپاره به د فقهاو نصوص راشي او دې د پاره د صحابه كرامو زمانه كې اصل هم شته دي هغې نه به اخذ وشي نو د دغه مسئلې ته ښه غور سره وګورئ .

نو دغه مسئله مونږ مشتمله ګرځوو په چند مباحثو باندې :

## المبحث الأول : في تعريف الوجد وبيان أنواعها :

چې مبحث اول په تعريف د وجد او په بيان د انواعو د وجد كې ده ، دا وجد څه شي دي او دا څه قسمونه لري .



Scanned by CamScanner

احياء علوم الدين د امام غزالي رَحِمَهُ اللَّهُ جلد ۳ صفحه ۲۳۷ کې د سماع باب ذکر کوي سماع نه سماع د چشتیانو قلندریانو نه ده مراد چې هغوي سماع ته تعبیر په قوالۍ باندې کوي او د هغې سره بیا رباب وي منګۍ باجه وغیره وي .

مراد د سماع نه دلته هغه سماع معروفه عند السلف هغوي به سماع اوریدل د اشعارو موزونه مطربه وو داسې آواز او شعرِ موزونه اوریدل چې هغه سړي په مستۍ کې راولي شعر خوندوروي آوازيې هم خوندوروي سړي مستوي دې ته دوي سماع وايي .

**اعلم ان السماع هو أول الأمر .**

مجلس د صوفیه وو کې ابتدايي حالاتو نه شروع چې ده اوله خبره د سماع ده چې دوي څه اشعار اوري .

**ويثمر السماع حالة في القلب .**

اوریدل د اشعارو موزونه وو مطربه وو په زړه کې یو حالت پیدا کړي ، دغه حالت چې زړه کې له اشعارو نه پیدا شي .

**تسمى الوجد .** دې ته دوي وجد وايي .

**ويثمر الوجد .**

اوس وجد خو یو وارد دی چې وارد شوې قلب د صوفي لره **من الله تعالى** دا خو هغه نور دی له هغې نه خو څوک تعبیر نه شي کولې چې هغه څه شی دی چې ده ته راغلل نو دې د هغې خارجي اثار ښايي نو .

**ويثمر الوجد .**

دا وجد چې کله راشي دې صوفي ته دا رپیدا کړي .

**تحريك الأطراف .**

اطراف نه مراد لاسونه او خپې دي کله به خپې خوزوي کله به لاسونه خوزوي .

**اما بحركة غير موزونة .** کله به حرکات غیر موزون وي .

**فتسمى الاضطراب .** دې ته صوفیه اضطراب وايي .



Scanned by CamScanner

**واما موزونة** . کله به یې دا حرکات بنه په وزن برابر وي .

**فتسمى التصفيق والرقص** .

دا مسمی کیږي په رقص او دوران باندې او په چکو وهلو باندې .

یعنې کله د لاسونو نه تکونه پورته کړي سماع څه فائده کوي وجد د وجد آثار په خارج اندامونو کې د صوفي څه شي دي : **تحریك الاطراف** ، لاسونه خپي خوزوي که حرکات موزون وه نو اضطراب او که غیر موزون وي **التصفيق والرقص** نو دا تصفیق او رقص **تحریك الاطراف** دا ټول امام غزالي رَحِمَهُ اللَّهُ د انواعو د وجد نه وګرځول .

حتی علامه سهروردي رَحِمَهُ اللَّهُ فرمایي چې : **بُکاء** خو هغه بُکاء چې د هغې سره صیاح وي او چغې وي هغه هم د وجد قسم دارنګې ضحک او خندا بې اختیاره هغه د وجد قسم او دارنګې غشي جریان د غشي په هغه باندې وتل د چغو له خولو نه دا له انواعو د وجد نه دي خپله دا وجد .

علامه سهروردي رَحِمَهُ اللَّهُ په کتاب عوارف المعارف جلد ۱ صفحه ۱۸۷ کې فرمایي:

**الوجد وارد يرد من الحق سبحانه وتعالى** .

دا وجد ورود د څه انوارو دي د اله العالمین له اړخ نه چې واردیږي قلب د صوفي لره .

عوارف المعارف جلد ۱ صفحه ۴۱۹ کې د وجد لپاره مختلف انواع نور هم ذکر کړې دي دا چې کله دا وجد صوفي باندې آیاتونه مخوفه غالب شي لکه هغه مجلس د ذکر کې ده ته داسې یو وارد راشي چې د خالق نه هغه خشیت په ده غالب شي نو دا مفضي شي بُکاء صیاح او چغو لره توبه توبه دا الفاظ آه اُه اُه دا آواز او کله داسې شي چې هغه د خدای تعالی د رحمت هغه نصوص څه وعدې او څه یې چې اوریدلې وي هغه ورته ذهن ته راشي قلب ته رحمت رامخې ته شي نو دې دومره په مستۍ کې شي چې بیا بې اختیاره خاندي بیا خوشحاله وي چې دا خو سم کار دي زه خو جنتي یمه خاندي کله ژاړي .

احیاء العلوم ومعه تخریج الحافظ العراقي جلد ۳ صفحه ۲۴۸ کې لیکي :

**النغمات الموزونة للأرواح** . اشعار موزونه د ارواحو د پاره دا څه اثر ورکوي .



Scanned by CamScanner

حتى انها لتؤثر فيها تأثيراً عجيباً.

امام غزالي رَحِمَهُ اللَّهُ يو بل ځای کې ليکي وايي د نغماتو تاثير چې اشعار تاثير نه لري وايي د اشعارو په تاثير خو وايي مار هم پوهيږي د مار لپاره خپله يوه شپيلي ده چې وي وهي مار هم ورته تاويږي بيا پاړوګريې ورته وايي نو ګوري دا حسن صوت په مار هم تاثير کړو هغه يې هم په مستي کې راوستلو او دغه شان يو خاص ترنم ده مست هغه دا عربان اوښانو ته وهي هغه ته حِدا وايي هغه آواز چې ورته شروع کړي اوښ هم تسليم شي غاړه ورته کيږدي ييخي داسې وي چې تقريباً ليوني شوې وي راشي خپل مالک ته.

فمن الاصوات مايفرح.

بعضې آوازونه دي چې سړي خوشحالوي.

ومنها ما يحزن ومنها ما ينوم ومنها ما يضحك ويطرب.

او بعضې آوازونه مستول کوي خندول کوي.

ومنها ما يستخرج من الاعضاء حركات.

بعضې هغه دي چې را اوباسي له اعضاء نه حرکات.

على وزنها باليد والرجل والرأس.

کله سر خوزوي اثريې دادی کله به خپه خوزوي کله به لاس خوزوي.

دارنګې عوارف المعارف جلد ۱ صفحه ۱۸۸:

واعلم ان للباكين عند السماع مواجيد مختلفة.

ژړيدونکو د پاره سماع د اشعارو په وخت وجدونه دي مختلف.

فمنهم من يبكي خوفاً ومنهم من يبكي شوقاً ومنهم من يبكي فرحاً.

خلاصه داده چې اصلاً وجد هغه:

وارد يرد للصوفي من الله تعالى.

چې هغه نور دي اثر د وجد د اندامونو حرکات اضطراري حرکت د سر لاس او د خپې او کله موزون راشي.



Scanned by CamScanner

تسمى التصفيق والرقص.

دا ټول انواع دي ژړاګانې چې صياح ورسره وي او خنداګانې چې مستي ورسره وي دا ټول د وجد په انواعو کې راځي.

## الايرادات مع الجوابات:

منکرين د وجد يو دري اقوال په رد کې پيش کوي خو دا تعصب ځکه کوي جمله نصوص د آيتونو د آحاديثو ذخيره کتب د فقهي غټ ټول په ځای پريږدي دري اقوالو پسې ځي يو قول د محمد ابن سيرين رَحِمَهُ اللهُ دي.

دويم قول د اسماء بنت ابي بکر رَضِيَ اللهُ عَنْهَا دي.

دريم قول د عبد الله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا دي دا هغه اقوی استدلالات د منکرينو د وجد دي.

قول د محمد ابن سيرين رَحِمَهُ اللهُ مفسرينو ذکر کړي بدون السند وبدون ذکر المسند او ماپسې ځان ستړي کړو خو مسند د هغې مې پيدا نه کړو اګر که تفاسيرو کې بعضې را اخيستې خو قول د مفسر د تابعي قول لره تبع تابعي قول لره د صحابي قول لره لابدي ده د سند او مسند نه د ابن سيرين قول دوي پيش کوي چې هغه ته چا وويل چې دلته يو قوم دي چې هغوي قرآن کريم واوري پريوځي چغې وهي نو هغه ورته وويل چې:

**فصل بيننا وبينهم** دادی چې داد يو ديوال په سر کينوي بيا ورته هغه کس راولي چې څه لولي ورته اشعار وي که تلاوت وي که دې ديوال نه راپريوته يا يې د کوهي په غاړه کينوي که کوهي ته پريوته نو صادق دي ګنې کاذب دي.

د ابن سيرين رَحِمَهُ اللهُ دا قول دوي پيش کوي تفسير القرطبي هم را اخيستې دي دا بعضې مفسرين چې د هغوي سوانح ولټول شي هغوي د صوفيه وو مخالف نه وي خو هغه علاقه او زمانه دده کې داسې خلک وي چې هغه تصوف بدناموي د ردود په هغې باندې کړې وي خلک يې فرق ونه کړي.

علامه قرطبي چې دي دده علاقه کې شيعه ګان ډير وه او دا چشتيان قلندريان هم ځان ته وايي او هغوي ډير خلاف د شريعت کارونه کوي چې په هغوي کې باطنيه فرقه هم ده خو هغوي متصوفه دي صوفيه نه دي نو ډير ردود علامه قرطبي کړي دا په هغه متصوفه وو د



Scanned by CamScanner

زمانې خپلې کړې دي د صوفیه وو مخالف نه دي ځکه چې ډیرو ځایونو کې دې قول نقلوي نو وایي دا قول د صوفیه کرامو دي نو که دې مطلقاً د صوفیه وو منکر وې نو صوفي سره کرام ولې لګوي او ځای په ځای په تفسیر کې د صوفي قول ولې را اخلي نو دې د صوفیه وو مخالف نه دي د متصوفه وو مخالف دي.

یو د ابن سیرین رَحِمَهُ اللهُ قول دي خو دا سند نه لري او نه یې مسند بنودلې شي چې دا فلاني کتاب د حدیثو را اخیستې دي دا دومره ذخیره د حدیثو سندي پرته ده په هغې کې دا ځوک نه شي بنودلې او دده جواب وروسته راځي خپله د ابن سیرین رَحِمَهُ اللهُ په شرحه کې به راشي.

دویم اعتراض پیش کوي له بي بي اسماء رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه چې هغه چا ورته وویل دلته یو کس دي تلاوت چې واوري پریوځي نو هغې وویل چې اعوذ بالله من الشیطن الرجیم.

دا قول د سند په لحاظ قوي دي خو دده په معارضه کې به مونږ اقوی روایات د اسماء بنت ابي بکر خپله پیش کړو چې په هغې خپله هم بیهوشي راغلې ده او دد ې په مخکې په صحابه کرامو بیهوشیانې راغلې دي.

او دریم اعتراض چې دي هغه د عبد الله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا دي چې هغه دا ویلې وه چې شیطان داخلیږي:

**في جوف احدهم.** په خیټه د یو کس کې.

**ما کان هذا صنیع اصحاب رسول الله** صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. دا د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د صحابه وو طریقه نه وه.

د هغې په سند کې په یو راوي باندې جرحه شته دي نو ایرادات دغه دري دي نو یو قول د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دي چې هغه دې ته د دخل شیطاني نسبت کړې دي او په دې یې رد کړې دي راځي په خپله د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چې په ده باندې په وخت د تلاوت یا د سماع القرآن کې څه حال راغلې دي او که نه.

الزهد لاحمد بن حنبل جلد ۱ صفحه ۱۹۲:

**حدثنا وکیع عن هشام الدستوائي عن القاسم بن ابي بزة حدثني من سمع ابن عمر قرأ**



Scanned by CamScanner

وَيۡلٞ لِّلۡمُطَفِّفِينَ .دا يې ولوستلو .

حتى بلغ : ﴿ يَوۡمَ يَقُومُ ٱلنَّاسُ لِرَبِّ ٱلۡعَٰلَمِينَ ﴾ فبكى . نو ابن عمر رَضِيَ ٱللَّهُ عَنۡهُ وژړل .

حتى خرا . تر دې چې پریوته .

د تلاوت په وخت کې په ابن عمر رَضِيَ ٱللَّهُ عَنۡهُ خپله پریوتل راغلې دي نو دې څنګه نسبت کوي دې لره چې د تلاوت د سماع په وخت کې یو سړي پریوځي ده کې شیطان دننه شوې ده .

وامتنع عن قراءة . او د قرائت نه تر ډیره وخته منع شو تلاوت یې نه شو کولای پریوته .

همدغه روایت حلیة الاولیاء جلد ۱ صفحه ۳۰۵ کې هم را اخیستې دي .

او کوم روایت دد دې په خلاف چې ابن عمر رَضِيَ ٱللَّهُ عَنۡهُ نه مروي دي :

ففي سنده سعيد بن عبد الرحمن بن عبد الله بن جميل بن عامر القرشي الجمحي

ابو عبد الله المدني قاضي بغداد .

ابن حجر لیکي :

صدوق له اوهام . صدوق وه خو وهمي هم وه اوهام یې لرل .

وافرط ابن حبان في تضعيفه . ابن حبان ورته شدید ضعیف ویلې دي .

نو د ابن عمر رَضِيَ ٱللَّهُ عَنۡهُ د قول معارضه راغله یو ځای یې هلته دې ته دخل شیطاني ویلې بالمقابل په خپله خَرَّ د تلاوت په وخت پریوتې دي دهغه روایت په سند په دغه راوي جرحه ده.

او یا ترې نه جواب تفسیرِ مظهري کړې په جلد ۱ صفه ۳۳۶ باندې په دغه آیت :

﴿ تَقۡشَعِرُّ مِنۡهُ جُلُودُ ٱلَّذِينَ يَخۡشَوۡنَ رَبَّهُمۡ ﴾ :

او قوله محمول على من يفعله تصنعاً . یا د ابن عمر رَضِيَ ٱللَّهُ عَنۡهُ قول محمول دي په هغه چا چې هغه د تلاوت په وخت کې پریوتل تصنعاً کوي قصداً یې کوي تواجد ته اشاره شوه .

قاضي صاحب لیکي :

وقول ابن عمر ان الشيطان يدخل في جوف احدهم وكذا استعاذة الأسماء رَضِيَ ٱللَّهُ عَنۡهَا . چې هغې اعوذ بالله ویلې وه .



Scanned by CamScanner

**محمول على انهما زعما غشي ذلك الرجل تكلفا و مكرا .**
دوي دا گمان کړې وه چې دغه سړي دا کار تکلفا وکړي او مکراً يې وکړي .
**ولذا نسباه الى الشيطان .**
داد قاضي صاحب عبارت دي يوه دا وجه وه دويمه دا چې :
**وانما كان انكار تلك الحالة منهما لعدم طريان الحالة عليهما وعلى امثالهما بناء على وسعة الحوصلة وقوة الاستعداد .**
صحابه وو باندې به واي حالت اکثري کې دا راتلل هم نه ځکه استعداد و نه يې غټ وه دليل په دې ما قلت باندې چې دوي رد په تکلفا او تصنع کړي نه په غيرِ اختياري هغه دا چې :
**ذكر عند ابن سيرين الذين يصرعون .**
هغه کسان چې پريوځي :
**اذا قرئ عليهم القرآن فقال بيننا وبينهم ان يقعد احدهم على ظهر بنية .** په ديوال باندې .
**باسطاً رجليه ثم يقرأ عليهم القرآن من اوله الى آخره فان رمى بنفسه فهو صادق .**
نو قاضي صاحب وايي :
**حيث علق صدقه على رمي نفسه من ظهر بنية مرتفعة فعلم منه انه حمل صرعه على الكذب والتكلف .**
د ابن سيرين قول نه خو ښکاره پته لګيږي چې دې صادق دي که کاذب دي دلته يې کينوي چې پته يې ولګي نو د هغه خو دا مقصد نه دي چې تاسو سړي راولي يعني صادق له کاذب نه بيل کړي څه په کې کاذبين دي څه په کې صادقين دي .
او هر چې روايت د اسماء بي بي دي چې استعاذه يې ويلې وه هغه هم محمول دي په تصنع او تکلف باندې ځکه له دې نه خپله هم غشي ثابته ده .
سنن النسائي جلد ۴ صفحه ۱۰۳:



Scanned by CamScanner

أنبأ سليمان بن داؤد عن بن وهب قال اخبرني يونس عن بن شهاب اخبرني عروة بن الزبير انه سمع اسماء بنت ابي بكر تقول قام رسول الله ﷺ فذكر الفتنة التي يفتن بها المرء في قبره.

د عذاب قبر بيان يې وکړو.

فلما ذكر ذلك ضج المسلمون ضجة. ضجة المسلمون معنى صاحوا چغي کړي مسلمانانو په چغو سره سمې چغې شروع شوې داسې چغې شوي.

حالت بيني و بين أن أفهم كلام رسول الله ﷺ.

دومره چغې شوې چې زه د نبي عليه السلام په تقرير نه پوهيدمه په مجلس کې دومره چغې وي.

فلما سكتت ضجتهم.

چې ددوي صياح او چغې ختمې شوې.

قلت لرجل قريب مني اي بارك الله فيك ما ذا قال رسول الله ﷺ في آخر قوله قال قد اوحي الي انكم تفتنون في القبور قريباً من فتنة الدجال.

دغه د اسماء بي بي د وړاندې صياحات په خپله راغلې دي د نبي عليه السلام د تقرير په وخت کې او دا چغې نو دا څنګه له هغې نه انکار کوي؛

روايت د بخاري کې په دې غشي هم راغلې ده چې کوم د کسوف په دور کې نبي اکرم ﷺ کوم تقرير کړې وه نو دې الفاظ دادی د اسماء بي بي په روايت د بخاري کې علاني الغشي په ماغشي غالبه شوه حتى قريبه وه پريوتمه بيا مې مخ وينځلو بيا را بيداره شومه بيا رابانديې غشي راغله نو دداسې تخويف له وجې نه په اسماء بي بي خپله غشي راغلي ده.

بخاري جلد ۲ صفحه ۱۲۳ کې هم دا روايت باختصار ذکر دي او عمدة القاري جلد ۱۳ صفحه ۱۱۱ کې معنى کوي:

ضج المسلمون وصاحوا وجزعوا.



Scanned by CamScanner

چغې ووهلې او دومره چغې شوې چې د نبي اکرم صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په آواز هم څوک نه پوهيدل.

هر چې ابن سيرين دي نو د هغه قول هم حمل دي په تصنع او تکلف ورنه ده نه بالفعل څه حالات صادر دي.

الزهد لاحمد بن حنبل جلد ۱ صفحه ۳۰۸:

حدثنا سفيان عن ابن زهير قال كان ابن سيرين اذا ذكر الموت مات كل عضو له على حدته.

چې ده به کله هم مرګ راياد کړو مړي به ترې جوړ شو يو اندام به يې هم کار نه کولو هر اندام به يې په خپل خپل ځای مړ پروت وه بې دمه به شو نو څه حال په ده خپله هم راغلي غير اختياري دا چې رد کوي نو مراد له هغې نه تکلف او تصنع ده د ابن سيرين رَحِمَهُ ٱللَّهُ دغه قول الزهد الكبير للبيهقي جلد ۲ صفحه ۶۹، او حلية الاولياء جلد ۲ صفحه ۲۷۲ کې ذکر کړې دي.

**فائده:**

سره زه ددې ذکر کوم استدلالاتو نه وړاندې دا خو جوابونه د هغوي د اقوالو وه.

چې دوي اکثره دا وايي چې ده کې شيطان دي نو دلته هغه نصوص ذکر کوم چې شيطان ذاکر ته راځي که غير ذاکر ته نو شيطان خو نصوص منع کوي ددې خبرې نه چې ذاکر ته نزدې نه راځي شيطان بلکې غافل ته شيطان راځي.

سورة مجادلة ۱۹ آيت:

﴿ٱسْتَحْوَذَ عَلَيْهِمُ ٱلشَّيْطَٰنُ فَأَنسَىٰهُمْ ذِكْرَ ٱللَّهِ﴾

په منافقينو شيطان غلبه حاصله کړې په نتيجه کې له هغوي نه يې د الله ذکر له ياده ايستلي.

نو دا نسيان د ذکر الله دا نتيجه د اثر د شيطان ده نو خپله پته لږې چې ذکر کوي شيطان به نه وي.

﴿أُو۟لَٰٓئِكَ حِزْبُ ٱلشَّيْطَٰنِ ۚ أَلَآ إِنَّ حِزْبَ ٱلشَّيْطَٰنِ هُمُ ٱلْخَٰسِرُونَ﴾.

دارنګې سورة الزخرف آيت ۳۶-۳۷:



Scanned by CamScanner

﴿وَمَن يَعْشُ عَن ذِكْرِ الرَّحْمَٰنِ﴾
څوک چې معرض شي د ذکر رحمن نه.
﴿نُقَيِّضْ لَهُ شَيْطَانًا﴾
مسلط کړو مونږ په هغه شيطان.
﴿فَهُوَ لَهُ قَرِينٌ﴾
نو دې دا شيطان ده لره قرين.
﴿وَإِنَّهُمْ لَيَصُدُّونَهُمْ عَنِ السَّبِيلِ وَيَحْسَبُونَ أَنَّهُم مُّهْتَدُونَ﴾
او دا شيطان اړوي دوي له سمې لارې نه خو دوي دا ګمان کوي چې مونږ په سمه يو شيطان دوي د سمې نه اړولې خو ددوي دا ګمان وي چې مونږ په سمه لاريو.

دارنګې ابن ابي شيبة جلد ۱۳ صفحه ۳۶۹ کې د ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا د ﴿الْوَسْوَاسِ الْخَنَّاسِ﴾ ترجمه ذکر کوي:

قال الشيطان جاثم على قلب ابن آدم فاذا سها و غفل وسوس واذا ذكر الله خنس.

اصل کې خنوس تأخر ته ويلې شي دا وروسته شي.
دارنګې الزهد لابي داود جلد ۱ صفحه ۳۶۴ کې هم دغه معنى ذکر کوي.
مسند ابي يعلى جلد ۷ صفحه ۲۷۸ کې هم ذکر ده خو په دغه صفحه د ابي يعلى کې مرفوع حديث دي:

حدثنا محمد بن بحر حدثنا عدي بن أبي عمارة حدثنا زياد النميري عن انس بن مالك قال قال رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إن الشيطان واضع خطمه على قلب ابن آدم فان ذكر الله خنس وان نسي التقم قلبه فذلك الوسواس الخناس.

مرفوع حديث کې هم پته لږي چې ذاکر نه په وخت د ذکر کې شيطان ځي او لري کيږي.



Scanned by CamScanner

# المبحث الثاني : الاستدلالات من القرآن الكريم :

که دا مونږ ووایو چې نفس دا حال تکلف او تصنع او حقیقت بیل نه کړو او وایو چې چا باندې دا حال راغې نو بس هغه شیطاني دي او د هیچا دا حال تسلیم و نه ګڼو نو د قرآن کریم د نص نه واضحه ده چې څه نا څه ددې حالاتو په موسی عَلَيْهِ السَّلَامُ هم راغلې دي .

سورة اعراف آیت : ۱۴۳ : ﴿وَلَمَّا جَاءَ مُوسَىٰ لِمِيقَاتِنَا وَكَلَّمَهُ رَبُّهُ قَالَ رَبِّ أَرِنِي﴾ دا سوال د ارني د کمال عشق او محبت نه شوې وه ده سره ددې علم وه چې د باري تعالی رؤیت نه کیږي دا سوال هم ترې غیرِ اختیاري وتلې دي :

د ګفتاره د دیدار شوق یې پیدا شو

موسی څکه د دیدار په تمنا شو

﴿أَرِنِي أَنظُرْ إِلَيْكَ قَالَ لَن تَرَانِي وَلَٰكِنِ انظُرْ إِلَى الْجَبَلِ فَإِنِ اسْتَقَرَّ مَكَانَهُ فَسَوْفَ تَرَانِي﴾ دغې غرته وګوره که چیرته یې قرار ونیوه دا په ځای پاتې شو په ځای خپل باندې

﴿فَسَوْفَ تَرَانِي﴾ زر ده چې ما به وګورې .

﴿فَلَمَّا تَجَلَّىٰ رَبُّهُ لِلْجَبَلِ﴾ هر کله چې تجلي وکړه رب د موسی عَلَيْهِ السَّلَامُ دغه غره لره.

﴿جَعَلَهُ﴾ وي ګرځوه دې تجلي ۀدې جبل لره .

﴿دَكًّا﴾ مکسورا . ټوټه ټوټه .

﴿وَخَرَّ﴾ پریوته موسی عَلَيْهِ السَّلَامُ.

﴿صَعِقًا﴾ چغې وهلې .

دا طریان د پریوتو په موسی عَلَيْهِ السَّلَامُ وتل د چغو له خولې د موسی عَلَيْهِ السَّلَامُ نه اثر د تجلي وه رڼا نور وه د فیض غلبه وه .

﴿فَلَمَّا أَفَاقَ﴾ کله چې را بیدار شو .

﴿قَالَ سُبْحَانَكَ تُبْتُ إِلَيْكَ﴾



Scanned by CamScanner

داد هغې اُرنې د سوال نه توبه او باسي د دې حال نه توبه نه ده چې ولې پريوتې يمه ولې مې چغې وهلې ګناه مې کړي.

﴿وَأَنَا۠ أَوَّلُ الْمُؤْمِنِينَ﴾ اول د مصدقينو نه يمه چې دې دنيا کې رؤيت ګران دي.

دې ځای باندې تفسير روح المعاني جلد ٦ صفحه ٧٩ بيروت چاپ مکتبه دار الفکر کې ذکر کوي:

اخرج ابو الشيخ عن ابي هريرة رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عن النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قال لما تجلى تعالى لموسى عَلَيْهِ السَّلَامُ كان يبصر دبيب النملة على الصفاء في الليلة الظلماء من مسير عشرة فراسخ.

چې کله تجلي ورته وشوه وايي ده ته دومره کشف حاصل شو چې دا وړوکي ميږي دا په توره شپه کې به يې لس (١٠) فرسخه کې ليدلو.

وبما اخرجه عن ابي معشر أنه قال مكث موسى عَلَيْهِ السَّلَامُ اربعين ليلة. څلويښت (۴٠) ورځې موسى عَلَيْهِ السَّلَامُ باندې دا تاثير وه.

لا ينظر اليه احد الا مات من نور رب العالمين. چا به هم ورته کتل نه چې ورته وبه يې کتل هغه به مړ شو من نور رب العالمين له وجهې د نور د رب العالمين نه د کثرت نور د وجهې نه ده ته کتونکي به مړ شو نو دې نه پته لګي چې قلوب د عبادو مجمع د نورِ الهي جوړيدې شي چې وخت په وخت دې د هغه له زړه نه دا نور خپور شي.

باقي خو تجلي وشوه غره ته خو هغه نور چې کوم دي هغه قلب د موسى عَلَيْهِ السَّلَامُ راونيوه هغه رڼا او د فيض رحمت په ده ځه اثر راغې پريوتلو چغې هم وهلې خو بيرته خپل حال ته راغې چې راغې هغه نور د زړه کې ساتلې وه بيا چې ساتلې وه چې ده ته به چا کتل په هغه به بيهوشي راتله.

## سوال: وجد او بيهوشي يو شي دي که فرق لري؟

**الجواب:** ګوري تاسو ته ما مخکې ويلې چې وجد دا وارد يرد من الله على قلب الصوفي، اثر راشي هغه وارد بيا اثرات په اندامونو لري د اندامونو کله خوزيدل دي کله خندل دي کله ژړيدل دي کله پريوتل دي دغه ټول حالات د وجد دي بيهوشي خو همدغه دده په زړه

فیض راغې او بینګ نه شو بیهوشي چې کومه ده د وجد اعلی قسم دي لکه ژړا یو قسم دي او دا هم اعلی قسم دي او صیاح او د رحمت له وجې نه ضحك نو بیهوشي اعلی قسم د وجد دي او که دا د وجد قسم نه شي بیا دې منکرین مونږ ته په رد کې دلیل پیش کړي هغوي خو ټول غشي باندې رد کوي اسماء بي بي چې استعاذه ویلې ده په وخت د غشي کې ویلې چې په بعضې خلکو غشي راشي هغې استعاذه ویلي ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه تپوس د پریوتلو شوې د تلاوت په وخت کې پریوځي هغه وویل شیطان یو کس کې دننه کیږي.

ابن سیرین نه تپوس دا شوې وه چې د تلاوت په وخت کې یو قوم یصرعون پریوځي نو که دا د وجد قسم نه شي او مونږ ترې نه استدلال د غشي نه کوو او که دا څوک وایي چې نه دا غشي وه وجد نه وه نو بیا دې په رد کې دي مونږ ته څه پیش کړې دي خو هم په رد کې ټول غشي پیش کوي.

که ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه یې پیش کوي که ابن سیرین نه یې پیش کوي که د اسماء بي بي نه یې پیش کوي او که د قرطبي حواله پیش کوي که هر ځای نه یې پیش کوي نو دغه رد په غشي راغلې بیا نو د وجد قسم یې که نو په وجد به رد راشي ستا استدلال به تام شي مونږ جوابونه وکړه او که ته دا د وجد قسم نه ګڼې نو بیا خو غشي ځانته شي دي وجد ځان ته شي دي بیا رد کې ولې دا اقوال پیش کوي اصلاً وجد ورود د هغه نور او فیض دي چې وارد شي قلب صوفي لره ددې بیا اثر څه شي دي ددې اثر په اندامونو هغه حرکات موزون تصفیق او رقص غیر موزون هغه سر لاس خپي خوزول دي او صیاح او چغې دي یا پریوتل دي دا ټول د هغې اقسام دي.

نو وایي چې ځلوینبت ورځې لا ینظر الیه احد الا مات من نور رب العالمین.

(۲) دا رنګې سورة اعراف آیت: ۱۵۵: ﴿وَاخْتَارَ مُوسَىٰ قَوْمَهُ سَبْعِينَ رَجُلًا لِّمِيقَاتِنَا فَلَمَّا أَخَذَتْهُمُ الرَّجْفَةُ﴾ موسی عَلَيْهِ السَّلَامُ د قوم خپل نه اویا (۷۰) کسان غوره کړل میقات زمونږ ته کله چې ونیول هغوي لره رجفې.

دلته مفسرین دوه قوله کوي یو قول دا چې مراد له رجفې نه مرګ دي قائلین ددې قول دغه اویا (۷۰) کسان او هغه کسان چې ﴿أَرِنَا اللَّهَ جَهْرَةً﴾ یوه واقعه ګرځوي.



Scanned by CamScanner

﴿فَأَخَذَتْهُمُ الصَّاعِقَةُ﴾ هغوي صاعقې ونيول هغه يادوي .

او وهب ابن منبه چې معروف مفسر دي هغه بيا وايي چې نه دا واقيعتين دي هغه قول چې دا دواړه يو ه ډله ده د سدي ده .

او وهب ابن منبه وايي چې دا دواړه جدا خلک دي ﴿أَرِنَا اللَّهِ جَهْرَةً﴾ يې چې ويلې هغه مړه شوې دي بيا ژوندي شوې دي او دلته چې کوم دي دا مړه نه دي بلکې دوي باندې لړزه راغله چې کله هلته يو سوال غلط دوي هم کړې وه خو هغه شان نه وه چې ﴿أَرِنَا اللَّهِ جَهْرَةً﴾ هلته يې چې دا ميقات کې څه انداز او دا نور او د فيض غلبه وليدله نو پوه شول چې د رحمت د غلبې په وخت دعاء قبليږي نو دعاء يې وکړه په دعاء کې تعدي وکړه دعاء يې څه وکړه وي ويل چې :

يا الله ! مونږ ته داسې مقام راکړي چې ستا په عبادو کې دي هيچا ته هم نه وي ورکړې نو د موسى عَلَيْهِ السَّلَامُ امت ته د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په امت بره مقام کله ورکول کيږي ددوي دا دعاوه ددې اويا (٧٠) کسانو نو پرتاو د هغه نور چې ورباندې وشو نو ﴿أَخَذَتْهُمُ الرَّجْفَةُ﴾ دوي رجفې ونيول تفسير بغوي جلد ٣ صفحه ٢٨٦ کې ليکي :

**قال وهب : لم تكن الرجفة صوتاً ولكن القوم لما رأوا تلك الهيبة اخذتهم الرعدة وقلقوا ورجفوا .**

ټول به خوزيدل په حرکاتو شول .

**حتى كادت** . داسې حال پرې راغې قريب وه .

**ان تبين مفاصلهم .**

چې دا اندامونه يې وخيجي دا جوړونه د لاسونو او خپو تا به ويل چې مات به شي داسې حال پرې راغې .

**فلما رأى موسى ذلك رحمهم وخاف عليهم الموت .**

موسى عَلَيْهِ السَّلَامُ پرې ويريدلو چې دا مړه نه شي نو بيا يې دعاء وکړه .

**فكشف الله عنهم تلك الرجفة فاطمأنوا وسمعوا كلام ربهم .**



Scanned by CamScanner

دې ځای باندې تفسیر روح المعاني په باب الاشارات کې جلد ۵ صفحه ۱۲۶ د سورة اعراف دغه آيت دې چې : ﴿وَاخْتَارَ مُوسَىٰ قَوْمَهُ سَبْعِينَ رَجُلًا لِّمِيقَاتِنَا﴾ نو وايي :

**إن موسى عَلَيْهِ السَّلَامُ اختار سبعين رجلاً من اشراف قومه ونجبائهم اهل الاستعداد والصفاء والارادة والطلب والسلوك .**

دا اویا (۷۰) کسان چې وه دا اشراف د قوم وه نجباء او خاصان وه خاوندان د قوي استعداد وه صفایي د زړونو یې لرله صاحبان د ارادې وه او صاحبان د طلب او سلوک وه .

**فلما اخذتهم الرجفة اي رجفة البدن** . دا رجفه د بدن کوم حال دی دا هغه دې چې راپیښیږي په ابتداء د صعقې د فناء کې هره فناء کې دا راځي که فنا في الشيخ وي د هغه په تعریف به راځي که فنا في الرسول وي د نعتونو سره که فنا في الله وي د تلاوت سره په وخت د طاري کیدو د پړق د انوارو کې او په راښکاره کیدو د هغه تجلیاتو د صفاتو کې چې عبارت دي :

**من اقشعرار الجسد** . جسد به خوزیږي .

**وارتعاده وكثيراً ما تعرض هذه الحركة للسالكين** . ډیر کرته راپیښیږي دغه حرکتونه سالکانو ته .

**عند الذكر** . د ذکر په وخت کې .

**او سماع القرآن او ما يتأثرون به** . هغه شي چې د وي پرې اثر اخلي چې شعرونو دي داسې حال پرې راشي .

**حتى تكاد تتفرق اعضاؤهم** . تر دې چې اندامونه یې ټوټه شي .

**وقد شاهدنا ذلك** . په سترګو لیدلي مونږ دا حال .

**في الخالدين** .
د شیخ خالد په مریدانو کې چې وه هغه :
**من اهل الطريقة النقشبندية** .
اهل د طریقې نقشبندي .



Scanned by CamScanner

ګوري تقريباً ۲۰۰ کاله مخکې محمود آلوسي تير شوې دي په بغداد کې شيخ خالد بابا دي او د هغه په مريدانو کې واي مونږ په خپلو ستر ګو ليدلې دي.

نو چې يو سړي نقشبندي ځان ته وايي او حاليې په مجلس کې نشته دي بيا په بل اعتراض کوي خو کمال به نه لري کنه اعتراض خو مه کوي چې مونږ سره نشته مونږ سره نشته خو حال خو تسليم کړي چې دا ښه حال دي او يا نقشبندي مه وايه څه بل څه به وي نو دا من اهل الطريقة النقشبندية.

وربما يعتريهم. کله راپيښيږي سالکانو ته.

في صلاتهم. په مانځه ددوي کې.

صياح معه. چغې.

فمنهم من يستأنف صلاته لذلك. بعضې له دوي نه مونځ راګرځوي.

ومنهم من لا يستأنف. بعضې نه راګرځوي.

وقد كثر الانكار عليهم. نن صبا انکار زيات شوې په دوي باندې.

محمود آلوسي فرمايي:

وسمعت بعض المنكرين يقولون.

بعضې منکرانو نه مې اوريدلې چې وايي که دا حالت په دې صوفي راغلې.

مع الشعور والعقل. شعور او عقل يې په ځای وي.

فهي سوء ادب ومبطلة للصلاة قطعاً. دا خو بې آدبي ده او مبطل د صلاة دي قطعاً چې قصداً به يې کوي.

او شعور او عقل وي نو دا خو بيا بې ادبي د مانځه ده مونځ يې بيا فاسد دي.

وان كانت مع عدم شعور وزوال عقل. او که شعور او عقل نه لري.

فهي ناقضة للوضوء. بيا خو يې اودس هم پسې مات دي.

ولنراهم لا يتوضؤون. مونږ ګورو چې دوي اودس نه راګرځوي.



Scanned by CamScanner

واجب.

دې وايي زه جواب ورکوم، محمود آلوسي او پاس يې ويلي:

**سمعت بعض المنكرين.** د منکرينو د وجد نه مې دا اوريدلي.

زه جواب ورکوم:

**بأنها غير اختيارية مع وجود العقل والشعور.** د وجد والا په اختيار کې نه وي خو عقل او شعور په ځای وي.

**وهي كالعطاس والسعال.** دده مثال د عطاس او سعال دي.

**ومن هنا.** له دغه وجې نه.

**لا ينتقض الوضوء.** نه ماتيږي اودس.

**بل ولا تبطل الصلاة.**

اوس د امام شافعي رَحِمَهُ اللَّهُ مذهب پيش کوي چې هغوي خو وايي که مانځه کې چا باندې خندا غالبه شوه وايي دا هم چې غير اختياري خندا وه وايي مونځ نه فاسديږي شوافعو خو وايي لا دا قول کړې دي:

**فلا يبعد.** نو بعيده نه ده.

**ان يلحق ما يحصل من آثار التجليات الغير الاختيارية.** چې ملحق دې شي نبي حکم پورې هغه حالات چې راپيښ شي له اثر د تجلياتو نه او وي دا حال غير اختياري.

**ولا يلزمه من كونه غير اختياري.** اوس نه لازميږي له دې نه چې يو شئ دې غير اختيار وي.

**كونه صادراً من غير شعور.** چې دا دې صادر من غير شعور شي يعنې دا نه دي چې غير اختياري دي نو شعور به هم نه وي دا نه ده.

**فان حركة المرتعش غير اختيارية مع الشعور بها.**

د ګوزنډ والي حرکت غير اختياري دي مع الشعور بها شعور يې شته، مثال يې پيش کړو.



Scanned by CamScanner

وهو ظاهر فلا معنى للانکار. ښکاره خبره ده هيڅ معنی انکار ته پاتې نه شوه.
په مانځه کې صياح سره چې کوم حرکات راشي خو حرکات داسې حرکات وي چې ظاهراً مفسد وي نفسِ صياح باندې خو فقهاو تصريح کړې.
تدل على زيادة الخشوع. خو مونځ نه فاسدوي او که داسې څه حرکات ترې نه راشي چې هغه د مانځه خلاف وي نو د هغې باره کې به هغه وخت کې دې معذور ګڼلې کيږي چې دا ټول وقت پرې ونيولې شي نو دا به قياس کيږي په معذورينو باندې، بيا يو سړي سلسل البول دي نو هغه د پاره په يو اودس دغه مونځ جائز دي.
خو دې به کله معذور ګڼلې کيږي چې کله د يو مانځه مکمل وخت دي اودس کوي او بيا هغه مشکل ده ته پيښيږي دې اودس کوي بيا مشکل پيښيږي دې اودس کوي بيا مشکل پيښيږي نو چې کله د يو مکمل مانځه وخت کې دغه مشکل پيښيده نو دې د معذورينو نه شو حکم يې داده چې اودس به وکړي ولو که وسط د صلاة کې ترې بولې لاړې شي بيا يې هم مونځ کيږي فقهاء دا وايي.
د باړي حضرت صاحب په کراتو تقريرونه کړي مريدانو ته چې ګوري کوم چا نه مانځه کې چغې ترې وهل شوې يې او دا غيرِ اختياري نه وي په اختيار وي نو که اختياري وي مفسد للصلاة که غير اختياري وي نو بيا تجربه ورباندې د يو وقت وکړي په دې کې يو صوفي وه د افغانستان هغه عرض وکړو چې صيب زه نه شم ټينګيدلې ما نه دا چغې وځي.
وايي څه خانقا ته لاړ شه هغه وخت يې حساب کړو په علماو باندې تقريباً دوه نيمې ګينټې وخت وه د ماسپښين وايي هلته بيا اودريږه بيا مونځ اعاده کړه هغه چې اودريدلو بيا ترې چغې ووتلې واي بيا اودريږه دوه نيمې ګينټې يې پرې مکرر کړو دا مونځ په دوه نيمو ګينټو کې د هغه چغې نه اودريدلې واې څه اوس معذوريې د فقهاو په قول دې نه بعد که تا نه په مانځه کې چغې وځي ته به معذور ګڼلې کيږي هغه داسې نه وه چې فقيه نه وه يا د فقهې نه خبر نه وه يا يې کتب نه وه کتلي يا د عامو پنجابي پيرانو غوندې يو امي شيخ وه نه هغه الحمد لله علم کړې وه مجود قاري وه.
دريم استدلال: د وجد لپاره د سورة الزمر ۲۳ آيت دي: ﴿اللَّهُ نَزَّلَ أَحْسَنَ الْحَدِيثِ كِتَابًا مُتَشَابِهًا مَثَانِيَ تَقْشَعِرُّ مِنْهُ جُلُودُ الَّذِينَ يَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ﴾



Scanned by CamScanner

تَقْشَعِرُّ معنى تتحرك وترتعد . چې خوزېږي او رپيږي ددې نه پوستكي د هغه كسانو .
﴿ يَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ ﴾ رب كريم خپل نه يريږي .
خوزيدل د پوستكي بدون د اندام نه كله كيدې شي نو ذكر د حال مراد ترې نه محل دي
اي ترتعد اعضاءهم چې اعضاء رپيږي .
﴿ ثُمَّ تَلِينُ جُلُودُهُمْ وَقُلُوبُهُمْ إِلَىٰ ذِكْرِ اللَّهِ ﴾ .
دا وروستني حال دي : ﴿ ذَٰلِكَ هُدَى اللَّهِ يَهْدِي بِهِ مَنْ يَشَاءُ وَمَن يُضْلِلِ اللَّهُ فَمَا لَهُ مِنْ هَادٍ ﴾ .
په تائيد ددې كې څو آحاديث زه ذكر كوم :
الدر المنثور في التفسير بالمأثور للسيوطي جلد ١٢ صفحه ٦٥٠ حكيم ترمذي په نوادر
الاصول كې يو امام ترمذي دي بل حكيم ترمذي دي دده نوادر الاصول ما سره شته او ځانته
محدث دي داده ته حكيم ترمذي وايي :
عن العباس بن عبدالمطلب په روايت سره حديث پيش كوي :
اذا اقشعر جلد العبد . كله چې ورپيږي پوستكې يعنې اندام د بنده .
من خشية الله تحاتت عنه خطاياه . ګناه ترې رژيږي .
كما يتحات عن الشجرة البالية ورقها . لكه په خزان كې چې زوړ بوټي نه پاڼي رژيږي .
دويم روايت :
واخرج الحكيم الترمذي عن ابي بن كعب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قال ليس من عبد على سبيل ذكر سنة
ذكر الرحمن . نه دي يو بنده په لاره د اتباع السنة او د ذكر الرحمن كې .
فاقشعر . چې ورپيږي جلد دده .
من مخافة الله تعالى الا كان مثله مثل شجرة يبس ورقها وهي كذلك فأصابها ريح تحات
ورقها كما تحات عن الشجرة البالية ورقها .
دارنګې تفسير البغوي جلد ٧ صفحه ١١٥ د حضرت عباس بن عبد المطلب روايت
مذكور دي :



Scanned by CamScanner

قال قال رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اذا اقشعر جلد العبد من خشية الله تحاتت عنه ذنوبه كما يتحات عن الشجرة اليابسة ورقها.

نو څه ناڅه حرکت په اندامونو باندې داد وجد يو قسم دی دې سره ګناه رژيږي.

۴: استدلال د قرآن کريم نه:

﴿إِنَّ إِبْرَاهِيمَ لَحَلِيمٌ أَوَّاهٌ مُّنِيبٌ﴾ هود آيت: ۷۵.

د اواه لپاره معاني متعددې مفسرينو ذکر کړې دي مونږ هغه يوې معنى نه اخذ کوو چې يوه معنى دا وه: لغتاً کثير التأوه ته وايي د فعال مبالغه ده په کثرت د اوه کې اُوه اُوه به يې کول ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ.

رب کريم ته د ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ د اُوه اُوه آواز مقبول شو قرآن کريم کې صفت کوي ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ اواه دي.

تفسير ابن جرير الطبري جلد ۱۲ صفحه ۴۲ کې د دغې معنى د تائيد لپاره سند خپل سره د ابو ذر غفاري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قصه ذکر کوي وايي:

کان بمكة ان رجلاً کان في الطواف. يو سړي مکه معظمه کې طواف کوي.

فجعل يقول اوه. دا آواز کوي.

ابو ذرِ غفاري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته شکايت کوي نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ور ته فرمايي:

دَعْهُ. پريږده دې.

انه اواه. دې راجع الى الله دي.

دغه کس په نورو رواياتو معلوم دي.

عبد الله ذو البجادين رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا وروسته روايت پرې دال دي:

حدثنا ابو کريب قال حدثنا وکيع وحدثنا ابن وکيع قال حدثنا ابي عن شعبة عن ابي يونس الباهلي قال سمعت رجلاً بمكة کان اصله رومياً يحدث عن ابي ذر قال کان رجل يطوف بالبيت ويقول في دعائه أَوَّهْ أَوَّهْ فذکر للنبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فقال إنه لأَوَّاه زاد ابو کريب في حديثه قال فخرجت ذات ليلة فاذا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يدفن ذلك الرجل ليلاً ومعه المصباح.



Scanned by CamScanner

نو دا هغه واقعه ده چې یا ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پرې راغي او دي یې د شپې خپنوه او نبي عَلَيْهِ السَّلَام ورته وروروپلې وه او یا یې دعا کړې وه چې یا الله زه ترې نه راضي او خوشحال یمه ته هم ترې راضي شي نو صدیق اکبر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل چې کاشکې دا مړي زه وې دا ذوالبجادین دي.

حدثنا ابن وكيع قال حدثنا زيد بن الحباب عن جعفر بن سليمان قال حدثنا ابو عمران عن عبدالله بن رباح عن كعب قال الاواه اذا ذكر النار قال اواه.

ابراهیم عَلَيْهِ السَّلَام به چې اور را یاد کړو نو د خولې نه به یې داوه چغه لاړه نو ابراهیم عَلَيْهِ السَّلَام په کثرت د تاوه باندې اوداوه اوه سره خدای تعالی یې صفت کوي نو د چا د خولې نه چې اوه اوه وځي او دنیوي مشکل نه وي دا خشیت باندې دلالت کوي.

د دغه حال د خالق نه مطالبه په کار ده چې په مونږ یې هم راولي نه چې انکار وشي انبیاء عَلَيْهِمُ السَّلَام او صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ باندې څه ناڅه ددې حالاتو راغلي خو کثیر نه وه د قوت استعداد له وجې نه خپله نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ باندې څه ناڅه حالات طاري شوې دي.

## المبحث الثالث : في بيان حال المصطفى صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ :

صحيح مسلم جلد ۱ صفحه ۱۳ :

قال جاورتُ بحراء شهراً . غارِ حراء کې مجاور ومه یوه میاشت.

فلما قضيت جواري . کله چې میاشت مې پوره شوه را کوز شومه یوه میاشت یې په غار کې تیره کړه.

فاستبطنت بطن الوادي فنوديت . آواز راته وشو :

فنظرت أمامي وخلفي وعن يميني وعن شمالي فلم أرا احداً . څوک مې هم ونه لیده.

ثم نوديت فنظرت فلم أرَ أحداً . بیا آواز وشو وه مې کتل څوک مې ونه لیده.

ثم نوديت فرفعت رأسي . بیا آواز وشو نو سر مې پورته کړو.

فاذا هو على العرش في الهواء.



Scanned by CamScanner

هو ضمير جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ ته راجع دي يعني جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ على العرش في الهواء يعني جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ د هغه د رؤيت سره .

فاخذتني رجفة شديدة. سختې رجفي ونيولمه په وجود يې رچ راغې د نبي اكرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په وجود باندې رچ راغې .

فاتيت خديجة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فقلت دثروني فدثروني . راغلم خديجې بي بي رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته .

فقلت دثروني فدثروني . نو زه يې پټ كړم .

فصبوا . هغوي را واړولې په ما باندې .

ماءً . اوبه .

ګورئ ده باندې هغه خوله هغه تاثير داسې حالت ته دې مبارك نزدې شو چې هغوي خطره د غشي پرې كوي چې بيهوشه نه شي نو اوبه ورباندې اچوي .

ايات نازل شو :

﴿يَا أَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ قُمْ فَأَنذِرْ وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ﴾ .

نو رجفه په ده مبارك هم راغله .

دغه رنګې صحيح البخاري جلد ۹ صفحه ۳۷ د وحي د نزول په وخت به دده مبارك حال څه وه حضرت جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ په اول ځل راغې :

فاخذني فغطني . څه زور يې راكړو ما ته .

حتى بلغ مني الجهد ثم ارسلني . بيا يې خوشي كړمه ما د هغې نه مشقت هم حس كړو ما ته يې وويل :

اقرأ . وايه .

قلت . ما ورته وويل .

ما أنا بقارئ فاخذني فغطني الثانية .

دويم ځل يې زور راكړو .



Scanned by CamScanner

حتى بلغ مني الجهد ثم ارسلني فقال اقرأ فقلت ما انا بقارئ فغطني الثالثة حتى بلغ مني الجهد ثم ارسلني فقال اقرأ باسم ربك الذي خلق حتى بلغ مالم يعلم فرجع .

نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ راوګرځيده .

بها . سره ددې آيتونو .

ترجف بوادره . چې رپيده د اوږي هډوکي دده .

بوادر د اوږې غټ هډوکي ته وايي واپس را روان وه دا اوږه مبارکه يې شرقيده او تولـه خوزيدله .

حتى دخل على خديجة فقال زملوني زملوني فزملوه . نو هغې پټ کړو .

نو ځـه حالات د اوږې د خوزيدو د وجود د رپيدو دا پـه نبي اکرم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ راغلي دي کله به چې د وحي نزول کيدو عائشه بي بي فرمايي چې پـه سخت ژمي کې بـه يې پـه مخ کنډ کنډ خولي را ماتې شوې نو هغه اثر د حرارت د فيض او د نور د الله چې دي هغه خو به يې حس کړو او هغه بوج پرې راغې :

﴿إِنَّا سَنُلْقِي عَلَيْكَ قَوْلًا ثَقِيلًا﴾ خو دومره وه چې دده مبارک سينه ډيره غټه وه .

دارنګې صحيح ابن خزيمة جلد ۲ صفحه ۵۳ :

اخبرنا ابوطاهر نا ابوبكر نا عبدالوارث بن عبدالصمد العنبري حدثني ابي حدثنا حماد عن ثابت عن مطرف عن ابيه رأيت النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يصلي ولصدره أزيز كأزيز المرجل .

نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ مونځ کولو سينې دده يو آواز کولو پـه شان د آواز د جوش وهلي ديګ لکه غټ ديګ چې خوټيږي نو داسې آواز وه لکه آواز د جوش وهلي ديګ هغه چې څنګه خوټيږي د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ سينه کې داسې د خوټيدو آواز راتلو نو دا بکاء هم وه ژړا هم وه خو هغه ژړا بيرته دده دومره دفع کوله چې د سينې نه بيرته آواز را پورته کيدو .

صحيح البخاري جلد ۹ صفحه ۳۸ کله چې وحي نازله شوه بيا دري کاله وحي بنده وه دې ته زمانه د فترة الوحي ويلې شي فترة د وحي پـه زمنِ اسلامي کې ۳ کاله دي نزول د اقرأ



Scanned by CamScanner

وشو بيا دري كاله وحي بنده شوه نو دا چا چې ويلې چې قرآن كريم ۲۰ كالو كې نازل دي د هغوي همدا جواب دي چې ۳ كاله زمانه د فترة الوحي يې نه ده حساب كړې .

حتى كې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ عمر شمار كړي نو ٦۰ كاله يې جوړ كړې دي نو د هغې جواب هم دغه دي چې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د فترة الوحي زمانه ، نه ده شمار كړې دلته دې زمانه ، نه شماري دې وايي چې ۴۰ كالو كې بعثت وشو او ۱۰ كاله مدينه منوره كې نزول د وحي وشو او ۱۰ كاله مكه معظمه كې نزول د وحي وشو نو خلكو ويل دا خو ٦۰ كاله شول هغه كلونه نه شماري هغه زمانه د نزول د وحي شماري نو ۲۰ كاله شول ۳ كاله خو فترة وه نو چې كله دا دري كاله وحي بنده شوه نبي اكرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خداى تعالى سره دومره حبيب الله او محبوب الله وه چې بس ده باندې مكه معظمه او دا كور او كلي پرې تنګ وه ځكه مينځ كې واسطه جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ وه هغه واسطه ختمه شوه ۳ كاله هغه نه راتلو نو ده مبارك باندې دغه سخت حال راغلې وه .

روايت د بخاري معرب بيروت چاپ جلد ۹ صفحه ۳۸ ته ګوري :

**و فتر الوحي فترةً** . وحي بنده شوه ۳ كاله .

**حتى حزن رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فيما بلغنا حُزناً** . نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ به خفه وه .

**غدا منه مرارا كي يتردى من رؤس شواهق الجبال** .

سحر وختي كې به څو پيري لاړ ددې لپاره چې ځان وغورځوي له سر د شواهق الجبال نه چې د غره له سره نه ځان وغورځوي .

**فكلما اوفى** . كله به چې پورته شو .

**بذروة جبل** . سر د يو غره ته .

**لكي يلقي منه نفسه** . دې د پاره چې ځان ترې وغورځوي .

**تبدّى له جبريل فقال يا محمد إنك رسول الله حقاً فيسكن لذلك جأشه** . هغه د زړه جوش به يې له دې سره آرام شو بيا به راغې ، بيا به يې زړه تنګ شو د غره سر ته به لاړو چې بيا ځان را وغورځوي ، بيا به جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ ورته راغې ور ته به يې ويل ته رسول الله يې .



Scanned by CamScanner

وتقر نفسه فيرجع فاذا طالت عليه فترة الوحي عد ألمثل ذلك فاذا أوفى بذروة جبل تبدى له جبرائيل فقال له مثل ذلك .

نو دا ۳ کاله د نبي عَلَيْهِ السَّلَام دا طريقه وه چې دې مبارک به دومره تنګيدلو چې د غره سر ته به ختلو ځان به يې غورځوه د جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَام په آواز به آرام شو .

نو دا حزن بسط په صوفي باندې دا راځي کله ډيره زياته خوشحالي وي انتهائي پوهيږي نه چې زه اوس څه وکړمه . او کله حزن غالب شي هُمْ غالب شي .

## حکایت :

زمونږ د متعلقينو او مريدينو نه يو کس دي ډير ساده دي يوه ورځ ما ته راغې وايي چې زما دا زړه چې دې درد کوي او داسې درد کوي چې نه د ورځې ترې خوب کولې شم نه د شپې ما ورته وويل چې دا خو ډيره ښه خبره ده چې نه د ورځې خوب کولې شي او نه د شپې وايي نه دا به څه مرض وي کنه خو زما خبره يې ونه منله ما ورته وويل چې دا مرض نه دي او ښه ده چې د زړه درد درته پيدا شو .

نو ما نه چې تللې کوم چا ته ورغلې دي چې ما دم کړه زه مريض شوې يمه زما دا زړه خوږيږي هغه چې هر څه دم پرې اچولې خو چونکې د ه د نعمت بې قدري وکړه بيا راغې ما ته وايي چې ياره ما خو ستا خبره ونه منله بد مې وکړو او زه لاړم ځان مې په چا دم کړو هغه درد ورک شو خو په هغه درد کې يو خوند وه بس هغه خوند پسې زه اوس ګرځم هغه نه پيدا کيږي.

ما ورته وويل چې هغه درد دم نه دي ورک کړې ستا ناشکري ورک کړې دي ته په دې ناشکره وې چې دا درد ولې زړه کوي ته که په دې شکر ګذار واې دا درد به هم واې خوند به هم واې حال به هم واې واې کلي کې خلک راته ليوني وايي ډير ساده دي دا څنګه ذکر دي چې خلک ما ته ليوني وايي ما ورته وويل چې ته ليوني يې وايي نه ما ورته وويل چې دا خو خلک ليوني دي چې تا ته ليوني وايي .

نو دغه کس يوه ورځ راته دا خبره هم کړې وه چې کله دومره خوشحاله شمه چې زه وايم چې والوځمه کله داسې تنګ يمه زه وايم چې ځان مړ کړمه نو هغه غريب عام سړي دي اوس بسط باندې څه پوهيږي نو دا وي کله داسې حال را شي .



Scanned by CamScanner

زما قاصر فکر دا دی چې د هغې لویه وجه دا وي چې که د معقول تشبیه محسوس سره ورکړو د ایضاح لپاره نو دا روح چې دي دا عروج کوي او هر عروج کې چې شي ځي دا ستړي کیږي دا په یوه ساه نه شي تللې .

لکه مرد کي پسې باروت واچول شي دا ځي یو ځای پورې ځي دا سې نه وي چې همدا سې به خوشي وي نو دا روح عروج کوي پرواز کوي د دې پرواز په وخت کې که ده ته حزن را نه شي او د غه ځای کې د ې و نه دریږي دا دویم سفر نه شي کولې .

په ده حزن راشي هغه ځای کې محفوظ شي دا دده دمه ده کله چې په دې صوفي بسط راشي او عروج خو په بسط کې کیږي په حزن کې نه وي نو بس دغه وخت کې یوه دویمه منډه کوي پرواز کوي دا بسط او حزن د دې لپاره په دې صوفي بدلیږي را بدلیږي .

دارنګې صحیح مسلم جلد ۷ صفحه ۹۲ دې کې به د بعضې خلکو شبهه دفع شي چې د صحابه کرامو زمانه کې دا ژړا ګانې او مجلس کې دا شور دا نه دې شوې .

هغه مخکې د اسماء بي بي حدیث مونږ پیش کړو د مسلم په حواله چې :

ضج المسلمون ضجة . دو مره چغې وي چې ما د نبي عَلَيهِ السَّلَامُ خبره نه فهموله چې نبي عَلَيهِ السَّلَامُ څه وایي .

دې حدیث ته هم ګوري :

عن انس بن مالك قال بلغ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ عن اصحابه شيء . نبي عَلَيهِ السَّلَامُ ته د صحابه کرامو نه د څه خبرې ذکر وشو چا څه ور ورسول دلته احادیث مجمل دي چې دا څه خبره رسیدلې وه .

فقال عرضت عليّ الجنة والنار فلم أر كاليوم في الخير والشر ولو تعلمون ما أعلم لضحكتم قليلاً ولبكيتم كثيراً قال فما أتى على أصحاب رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ يوم اشد منه .

له دې نه سخته ورځ پرې نه وه راغلې .

قال غطوا رؤوسهم ولهم خنين.

سرونه هر چا پټ کړل او ټیټ یې کړل او دوي لره ژړا ده.

د خنين معنى به وروسته راشي بعضې نسخو کې خنين راځي او بعضې نسخو کې حنين راځي .

**قال فقام عمر فقال رضينا بالله ربا وبالاسلام دينا و بمحمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نبياً قال فقام ذاك الرجل فقال من أبي قال أبوك فلان فنزلت : ﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَسْأَلُوا عَنْ أَشْيَاءَ إِن تُبْدَ لَكُمْ تَسُؤْكُمْ ﴾ .**

نو دوي سرونه ټيټ کړل او دوي لره خنين وه .

د خنين معنى شرح النووي على مسلم جلد ۸ صفحه ۸۱ کې کوي :

**ومعناه بالمعجمة خنين صوت البكاء وهو نوع من البكاء قالوا و اصل الخنين خروج الصوت من الانف كالحنين بالمهملة من الضم .**

حنين هغه چې د خولې نه آواز راوځي او خنين هغه دي چې دا ژړا څوک ټينګوي او د پوزو نه يې آواز وځي .

**وقال الخليل هو صوت فيه غُنة .**

دا هغه آواز دي چې غنه ولري دا ژړا چې کله اوږده شي يو درد پيدا کړي دغې آواز ته وايي .

**وقال الأصمعي اذا تردد بكاؤه فصار في كونه غنة فهو خنين .**

او کله چې ژړا زياته شي بار بار وي او دې يې ټينګوي بيا راځي دې سره غنه وي دې ته خنين وايي .

**وقال أبوزيد الخنين مثل الحنين وهو شديد البكاء .**

او ابو زيدؒ وايي چې خنين او حنين يو معنى ده شديد البكاء ته ويلې شي .

د شرح السنة جلد ۱۲ صفحه ۳۷۹ کې چې کوم روايت دي دا مې دې د پاره ذکر کړي چې دوي داسې نظر جوړ کړي چې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ زمانه کې د هغه د وړاندې نه چا شعر ويلې او نه دا نعت خوانيانې شوې دي مسجد کې او نه ژړا ګانې شوې دي .

نا دا روايت په دې دال دي چې د هغه په مجلس کې اشعار هم ويل کيدل :



Scanned by CamScanner

اخبرنا ابو محمد الجوزجاني اخبرنا ابو القاسم الخزاعي اخبرنا الهيثم بن كليب حدثنا ابو عيسى حدثنا علي بن حجر أخبرنا شريك عن سماك بن حرب عن جابر بن سمرة قال جالست النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اكثر من مائة مرة وكان اصحابه يتناشدون الشعر.

وه صحابه هغوي به شعرونه ويل.

ويتذاكرون اشياء من امر الجاهلية وهو ساكت.

د جاهليت هغه كارونه به يې هم يادول د خپلې د سادګۍ نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ به غلي ناست وه.

وربما يتبسم معهم. او كله به يې ورته تبسم هم كوه.

نو دا د هغه د وړاندې د اشعارو ويل دي او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې د ۱۰۰ ځل نه زيات زه داسې ناست يمه چې خلكو اشعار ويلې دي او دې ناست دي.

دارنګې تفسير القرطبي جلد ۱۹ صفحه ۲۴۰ په دې كې د نبي اكرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپله غشي ثابته ده چې په ده مبارک هم راغلې ده:

اراد النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. اراده وكړه نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ.

ان يرى جبريل في الصورة التي يكون بها عند ربه جل وعز.

جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ ته وايي چې ته خالق سره په كوم صورت كې يې په هغه صورت كې راته ځان وښايه.

فقال ما ذاك إلي. دا زما اختيار نه دي اجازت نشته.

فاذن له الرب جل ثناؤه. خداى تعالى ورته اجازت وكړو چې ځان ورته وښايه.

فأتاه. جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ ورته راغې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ لره.

وقد سد الافق. دا ټول افق يې نيولې وه دومره غټ وه.

فلما نظر. هر كله چې وكتلې.

اليه النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خر مغشياً عليه. نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ بيهوشه پريوتلو له دې وجې نه مشركينو وويل: انه مجنون.



Scanned by CamScanner

دا مشركينو چې اله مجنون ويلې دا په ده غشي راغلي وه نو راتلل د غشي داد صلحاو عمل شو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ باندې راغله او غشي والا ته مجنون ويل داد مشركينو عمل شو .
دا رنګې تفسير سمعاني جلد ۸ صفحه ۳۰۲ کې حديث ذکر کوي د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ :

**قال دخلت اليهود على نبي الله فقالوا يا محمد صف لنا ربك .**

داخل شول يهود په نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ باندې هغوي وويل نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته د خپل رب تعريف راته وکړه .

**والسبه لنا** . او نسب يې راته بيان کړو .

**فقد وصف لفسه في التوراة ولسبها** . دا نسبها ددوي دروغ وه چې خپل نسب يې بيان کړي العياذ بالله .

**فارتعد رسول الله حتى خر مغشياً عليه .**

د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په وجود باندې رږ راغې دومره ورپيده تر دې چې بيهوشه وغورځيدلو.
داد هغوي دوران او د جهل نه ډک قول د وجې نه په نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ دا حال راغې چې عذاب پرې رانه شي دا څه وايي .

**فقال كيف تسألوني عن صفة ربي ولسبه ولو سألتموني ان أصف لكم الشمس لم أقدر عليه .**

د هغه لمر د ذات تعريف درته نه شم کولې نو د خداى جَلَّجَلَالُهُ د ذات تعريف به درته څنګه وکړم.
د خداى تعالى د ذات تعريف خو تعريف د صفاتو ته ويلې شي د ذات تعريف خو نه کيږي د صفاتو تعريف به کوي او د هر صفت په تعريف کې د ذات الله تعريف پروت دي هغې جاهلانو ورنه د ذات الله تعريف وغوښتلو چې ذات يې وښايه او نسب يې وښايه .
نو دې جواب کې وايي که تاسو ما نه دا غواړي چې د لمر د ذات تعريف راته وکړه هغه هم قادر پرې نه يمه څکه د لمر د ذات به څه وايم سوا له دې نه چې په دې وخت راخيژي او په دې وخت پريوځي او ډيره زياته رڼا لري او ټوله دنيا يې روښانه کړي خارجي صفات به يې کوي نو ذات نه به يې څه وايي چې دا څه شي دي .



Scanned by CamScanner

فهبط جبريل عَلَيْهِ السَّلَامُ فقال يا محمد صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قل لهم الله احد الله الصمد .

دا سورة نازل شو نو د غه دوه روايات دې باندې شول چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ باندې غشي راغلې ده نو د هر غشي حالت ته شيطاني حالت ويل حماقت دي .

## المبحث الرابع : في بيان أحوال الصحابة رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ :

معجم ابن المقري جلد ۱ صفحه ۱۶۷ د ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ روايت ذكر كوي :

قال كنت عند النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وعنده ابو بكر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ.

ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې زه او ابو بكر صديق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ سره ناست وو .

عليه عباءة قد خللها على صدره بخلال .

هغه باندې يوه چپن وه چې د هغې چپن مينځ كې څه تاكي لګولې وه .

فنزل جبريل عَلَيْهِ السَّلَامُ فقال ما لي ارى ابو بكر عليه عباءة قد خللها على صدره بخلال .

داد چپنې د صدفونو يعني د توكمو ځايونه يې په ونو او غنو باندې بند كړې وه .

فقال انفق ماله علي قبل الفتح . ټول مال يې خيرات كړي دي مخكې د فتحې نه ما باندې .

قال فأقرئه عن الله عز وجل السلام .

جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ ورته فرمايي د خداى تعالى له طرف نه ده ته سلام ووايه .

و قل له يقول لك ربك عزوجل يا أبابكر أراض أنت عني في فقرك هذا .

په دې فقر كې ما نه راضي يې .

ام ساخط ؟ او كه ناراض يې .

فالتفت النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الى أبي بكر . نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ حضرت ابو بكر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته وكتل.

فقال يا أبابكر هذا جبريل يقرئك السلام ويقول لك أراض انت عني في فقرك هذا ام ساخط ؟ فبكى ابو بكر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ.

وژړل ابو بكر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او په جيګ آواز يې وويل :



Scanned by CamScanner

اعلى ربي اسخط؟ انا عن ربي راض انا عن ربي راض. دا يې وويل داد فرحت د دغه سلام د باري تعالى نه په ده باندې دغه حال دلته طاري شوې وه.

شاه عبدالعزيز رَحِمَهُ ٱللَّهُ په تفسير عزيزي چې ۳۰ پاره ده او صفحه ۲۰٦ ده همدا واقعه فارسي کې ذکر کوي هغه له دې نه د وجد ثبوت کوي او وايي:

ابوبکر صديق رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ را بشنيدن اين سخن حالتي رو داد.

ابوبکر صديق رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ لره ددې خبرې په اوريدو يو حالت راغې.

که بر مثال ارباب وجد مست شد. په شان د وجد د صوفيانو چې په صوفيانو راځي دې مستي کې راغي.

ميگفت. چې ويل يې.

من چه قسم کدورت باپروردگار خود دارم بار بار به آواز بلند همين نغمه را ميسرايد. په جيګ آواز به يې همدغه نغمه تاوه وله: انا عن ربي راض انا عن ربي راض.

نو دې وايي داد هغه مستي له وجې نه په ده دا حال راغلې وه ددې خبرې د خوشحالي.

عمرِ فاروق رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ باندې د خوف د غلبې له وجې نه څه ډېر حالات مذکور دي.

شعب الايمان جلد ۳ صفحه ۴۱۴:

وروينا في فضائل عمر بن الخطاب رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ عن الحسن رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ قال كان عمر بن الخطاب رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ يمر بالاية في ورده.

ده به چې کومو اورادو کې آيتونه لوستل او دده وظيفه به وه چې يو آيت باندې به يې مرور وکړو.

فتخنقه. نو ساه به يې بنده شوه ژړا به ونيوه ستوني به يې بند شو.

فيبكي. ژړل به يې دومره به يې وژړل.

حتى يسقط. راپرېږي به وتلو.

ويلزم بيته اليوم واليومين حتى يعاد يحسبونه مريضاً.



Scanned by CamScanner

یوه ورځ ده ورځې به کور کې پروت وه بهر به نه شو تللې تر دې چې بیمار پرسي به یې کیده خلکو به ګمان کوه چې مریض دي .

دارنګې محض الصواب في فضائل أمیر المؤمنین عمر بن الخطاب جلد ۲ صفحه ٦١٦ روایت ذکر کوي :

ان قوما أتوا عمر بن الخطاب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ. قوم ورته راغې .

فقالوا یا أمیر المؤمنین ان لنا اماما شابا . زمونږ یو ځوان امام دي .

اذا صلی . چې کله مونځ ته اودریږي .

لا یقوم من المحراب . نه اودریږي په محراب کې .

حتی یتغني بقصیدته .

وایي چې محراب ته وړاندې شي نو سم نعت خوان دي یو ځل یو رباعي ووایي نو بیا جمعې ته مخکې شي اشعار ووایي نو بیا جمع ته مخکې شي حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته په شکایت راغلو داسې کار کوي چې جمعې ته یې مخکې کړو نو اول رباعي ووایي بیا جمع کوي .

قال عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ. حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ورته وویل .

فامضوا بنا الیه .

راپاځي راځي چې ورشو ده پسې راغي ورته هغه ورته وایي یا امیر المؤمنین څه شي راوستي که ستا ضرورت وایي ویلې به دې وه زه به درغلي وم ډیره عاجزي کړې ده وایي ما ته چا وویل چې ته جمع ته مخکې کیږي نو اول اشعار وایي بیا جمع کوي وایي هاو دا کار خو کومه اقراریې کړې دي .

قال بلغني عنك انك تتغني بین یدیك قال نعم قال یا امیر المؤمنین انما عظة أعظ بها نفسي . دا خو څه هسې رباعي نه ده دا خو یو شعر دي هغې کې خپل ځان ته نصیحت کومه نو بیا جمعې ته مخکې کیږم .

قال له عمر قُلْ . حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ورته وویل ووایه .



Scanned by CamScanner

قال إني أخاف الشنعة ان افعل بين يديك . دا خو ما تا ستا د وړاندې غټه شوخي بنكاري چې زه اشعار وايمه دا جرأت نه شم كولې .

قال له قل . حضرت عمر رضي الله عنه ورته فرمايي وايه :

فان كان حسناً قلت معك . كه ښه وي زه يې هم درسره وايم .

وان كان قبيحا نهيتك عنه . كه قبيح وي له هغې نه دې منع كوم .

قال فاطرق الفتى . سر يې تيټ كړو .

ثم انشاء . شروع شو .

يقول . چې ويل يې .

و فؤادي كلما نبهته ۞ عاد في اللذات يبغي تعبي

لا أراه الدهر الا لاهياً ۞ في تماديه فقد برح بي

يا قرين السوء ما هذا الصباء ۞ فني العمر كذا باللعب

نفسي لاكنت ولا كان الهوى ۞ راقبي مولاك و خافي و ارهبي

هر كله چې زړه ته آگاهي وركومه = بيا گرځي ميلان كوي للذات لره يبغي تعبي لتموي ستړتيا زما يعني ما هغه سختي ستړتيا ته رسوي .

لا أراه الدهر الا لاهيا . اوږده زمانه ، نه گورم دا نفس خپل مگر لاهي .

في تماديه . په سركشي خپله كې .

فقد برح بي . پس په همدغه حال په ما باقي پاتي دي .

يا قرين السوء ما هذا الصباء . اى بد ملگري نفس ته وايي .

ما هذا الصباء . څه دي صباوت او بې ديني ستا .

فني العمر كذا باللعب . عمر دې په لعبو باندې فاني كړو خپل نفس ته مخاطب دي په دې كې .



Scanned by CamScanner

نفسي لا كنت ولا كان الهوى اي نفسه . يو وخت داسې وه چې نه ته وې او نه دې هوا وه نو اصل کې اله موجود وه .

راقبي مولاك وخافي وارهبي . وويريږه له هغه نه د هغه نګهباني ومنه او هغې ته منتظر شه .

فبكى عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ . حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ژړل .

وقال هكذا ينبغي كل من يكره . هر څوک چې يريږي په مانځه کې د خطراتو نه هر يو دې دا شعر ووايي .

قال عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وانا ايضاً اقول نفسي لا كنت ولا كان الهوى راقبي مولاك وخافي وراهبي . هغه هم پسې داسې وويل خپله .

دارنګې احياء العلوم الدين جلد ۲ صفحه ۲۹۷ :

وسمع عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ رجلاً يقرأ ان عذاب ربك لواقع ما له من دافع فصاح صيحة وخر مغشياً عليه .

نو دده مبارک له خولې نه يوه چغه لاړه بيهوشه پريوتلو .

فحمل الى بيته . په کټ کې واچولې شو کور ته يوړلې شو .

فلم يزل مريضاً في بيته شهراً . يو مياشت په کور کې بيمار وه .

دارنګې کنز العمال في سنن الاقوال والافعال جلد ۱۲ صفحه ۵۹۱ ، جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ راغې د جنت تعريفونه کوي دا اوږد حديث دې اصلاً حديث دا دی عمرِ فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ راغې وايي د معراج په شپه جنت ته تللې وي مونږ ته خويې لږې قصې وکړه نو رحمت عالم ورته فرمايي چې که دومره عمر درکې تير کړمه لکه نوح عَلَيْهِ السَّلَامُ چې څومره قوم کې تير کړي وه ۹۵۰ کاله وه نو که ۹۵۰ کاله د جنت خبرې کومه نو خلاصي به نه شي دومره څه ما په جنت کې کتلې دي او دا مې چا ته ويلې هم نه وه خو تا رانه تپوس وکړو تا ته به يې ووايمه بيا يې دا واقعه ورته شروع کړه .

ما دلته اختصار کړې .

يو ماښې وه ما جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ ته وويل :



Scanned by CamScanner

من يصير اليها ومن يسكنها . هغه د ومره بناشسته وه .

ضوؤها كضوء الشمس في الدنيا . ما ته جبرائيل عليه السلام وويل .

يسكنها ويصير اليها من يقول الحق ويهدي الى الحق واذا قيل له الحق لم يغضب ومات على الحق .

دا سړي به ورته ځي ، ما وويل .

يا جبريل هل تسمي احداً . د چا نوم اخلي او كه نه .

قال نعم رجلاً واحداً . يو نوم به درته واخلم .

قلت من ذاك الواحد ؟ قال عمر بن الخطاب . چې دا خبره وشوه .

فشهق عمر شهقة . نو د عمرِ فاروق له خولې نه يوه چغه لاړه .

فخر مغشياً عليه الى الغد من تلك الساعة .

صبا تر د غه وخته پيا بيهوشه پروت وه نو داد فرحت نه پرې راغله مستي راغله چې دا حال ده ته ثابت شو .

قال ابو محمد فحدثني عبدالله بن الحسن ان عمر بن الخطاب لم يضحك ملء فيه بعد ذلك حتى فارق الدنيا .

ددې حديث له اوريدو نه وروسته يې په ډكه خوله نه دي خندلې .

دارنګې سنن الكبرى للبيهقي جلد ۸ صفحه ۶ . دلته د حضرت علي او حضرت جعفر د حضرت زيد رضي الله عنهم د دريو صحابه كرامو جذب او وجد دي له مستي نه دا كار شوې دي نبي اكرم صلى الله عليه وسلم حضرت زيد رضي الله عنه ته وويل :

انت اخونا ومولانا فحجل . هغه حجل وكړو وي ويل حضرت جعفر رضي الله عنه ته :

انت اشبههم بي خلقاً وخُلقاً . ته په دې تولو كې اخلاقو او رنګ كې زما په شان يې .

فحجل . هغه هم حجل وكړو .

وراء حجل زيد . وروسته له حجل د حضرت زيد رضي الله عنه نه .



Scanned by CamScanner

ثم قال لي انت مني وانا منك. حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي ما ته يې دا خبره وکړه ته زما نه يې زه ستا نه يمه.

فحجلت. ما هم حجل وکړو.

وراء حجل جعفر. وروسته له حجل د حضرت جعفر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه.

اوس د حجل معنى امام بيهقي کوي سنن الکبری للبيهقي جلد ١٠ صفحه ٢٢٦ باب لګوي:

باب من رخص في الرقص اذا لم يكن فيه تكسر وتخنث. چا چې رقص ته جواز ورکړې دي کله چې په دې کې تکسر او تخنث نه وي د هيجړاګانو هم مثل کيدل او په دې کې مات مات کيدل نه وي صرف دوران وي چې دې ته چا جائز ويلې د هغې دليل څه شئ دي.

دا حديث يې بيا پيش کړې دي:

وفي هذا ان صح دلالة على جواز الحجل. او حجل څه ته وايي.

وهو ان يرفع رجلاً. چې يو خپه اوچته کړي.

ويقفز على الاخرى. او په بلې ټوپ ووهي.

من الفرح. له خوشحالي نه.

فالرقص الذي يكون على مثاله يكون مثله في الجواز.

سيوطي رَحِمَهُ اللَّهُ د حجل معنى په دوران کوي هغه وايي دا يو خپه اوچته کړي د بلې خپې په پونده باندې تاو شي دې ته حجل وايي.

نو هسې سوچ چې وکړې شي چې نبي اکرم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ناست وي حضرت زيد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خپه اوچته کړي هغه ټوپونه وهي او بيا ګرد تاويږي او هغه لا په دې حال کې دي چې دويم خوشحالي کې حضرت جعفر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ راغې هغه:

وراء حجل زيد. د هغه شا ته هغه لګيا دي تاويږي هغه لا ناست نه دي چې حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خوشحالي کې راغلو هغه يې شا ته پاڅيدو.

فحجلت وراء. د هغې نه اخوا ما حجل وکړو.



Scanned by CamScanner

دري کسان د نبي عَلَيْهِ السَّلَام په مخکې یا ټوپونه وهي خپه یې اوچته کړې ده او یا تاویږي او هغه منع نه کوي وروسته به حواله راشي امام سیوطي رَحِمَهُ اللّٰهُ فرمایي:

هذا اصل لرقص الصوفية في مجالس الذكر . په مجلس د ذکر کې د صوفیه وو د رقص د پاره دا اصل عظیم دي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام منع نه وه کړې .

نو داد خوشحالي نه دا حال دوي ته راغې چې نبي اکرم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ما ته اخ او مولا وایي هغه ما ته دا الفاظ استعمالوي :

اشبهت خَلقي وخُلقي . یا انت مني وانا منك دا ټول عجیب صفات دي نو خوشحالي نه دا حال پرې راغلې وه .

دارنګې تفسير الدر المنثور جلد ۱۴ صفحه ۱۳۸ حسن بصري رَحِمَهُ اللّٰهُ فرمایي:

كان شاب على عهد عمر بن الخطاب رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ملازم المسجد والعبادة .

د عمرِ فاروق رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ زمانه کې یو ځوان وه له مسجد سره ملازم وه یعنې همیشه به یې عبادت کوه .

فعشقته جارية . یوه جاریه پرې عاشقه شوله .

فأتته في خلوة . دغه جاریه راغله دې ځوان ته په یواځې والي کې .

فكلمته . خبرې ورسره وکړې .

فحدث نفسه بذلك . هغې به ځه مطالبه کړې وي ده له ځان سره یو څو خبرې وکړې .

فشهق شهقة . یوه چغه یې ووهله .

فغشي عليه . نو غشي پرې راغله .

فجاء عم له الى بيته . یو تره یې ورته راغې دې یې کور ته یوړو .

فلما آفاق . هر کله چې رابیدار شو .

قال يا عم انطلق . وي ویل ای تره زما لاړ شه .

إلى عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فأقرئه مني السلام .



Scanned by CamScanner

حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته زما سلام وايه ورته ووايه هغه ته .

ما جزاء من خاف مقام ربه . څه ده جزاء د هغه چا چې له خدای نه یرېږي او غلط کار پرېږدي .

فانطلق عمه فأخبر عمر . تره یې لاړ حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته یې وویل .

وقد شهق الفتى شهقة أخرى فمات منها . دلته په کور کې دي ځوان دويمه چغه ووهله هغې نه پس وفات شو .

فوقف عليه عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ . نو عمرِ فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته راغې او درېدلو .

فقال لك جنتان لك جنتان .

بل حديث مې وليدو چې دې يې دغه وخت کې دفن کړې وه عمرِ فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل ولې مو زه خبر نه کړم .

نو راغې قبر ته یې اودرېدلو او قبر ته آواز کوي : لك جنتان لك جنتان .

بيا د قبر نه ورته اواز راغې چې عمرِ فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ما ته جنتونه ميلاو شول .

نو داد غلبې د خشیت نه داسې راڅي کوم ردود چې مخکې ما ذکر کړي ابتداء کې حمل دي په تکلف او تصنع باندې دي .

دارنګې شعب الايمان جلد ۲ صفحه ۲۸۵ کې د صحابه کرامو نه غیر د نورو خواصو خاشعينو احوال ذکر کوي ، محمد بن سماک وايي :

دخلت البصرة فقلت لرجل كنت أعرفه دلني على عبادكم . بصره کې يو کس مې پيژندلو ما ورته وويل چې تاسو کې عابدين څوک دي هغه راوښايه .

فأدخلني على رجل عليه لباس الشعر طويل الصمت . نو يو سړي ته یې بوتلمه او ډير خاموشه وه .

لا يرفع رأسه الى احد . چا ته يې هم سر نه پورته کوه غلي وه ښکته به يې کتل .

قال . دې وايي .

فجعلت . زه شروع شوم .



Scanned by CamScanner

استنطقه الكلام . ما ورسره خبرې كولې .

فلا يكلمني . ما سره يې خبرې نه كولې .

قال محمد بن سماك . وايي .

فخرجت من عنده فقال صاحبي . ما ته دې ملګرې وويل .

هاهنا ابن عجوز هل لك فيه؟ دلته د يو كونډې بوډۍ ځوی دی هغه ډېر غټ عابد دی هغې ته نه ځې .

ګورئ دا محدثين دي خو عبادو سره ناستې كوي د فائدې د پاره .

قال فدخلنا عليه فقالت العجوز . دې مورېې ويل دې بوډۍ :

لا تذكروا لابني شيئاً من امرِ جنةٍ ولا نار . زما دې ځوي ملاقات له راغلي خو ګورئ د جنت او د نار ورته ذكر مه كوي قصې به ورته نه كوي دلته .

فتقتلوه . كه يا مو جنت ياد كړو يا مو جهنم ياد كړو راته مړ به يې كړي .

فليس لي غيره . بل ځوي مې نشته .

محمد بن سماك فرمايي :

فلما دخلنا عليه . چې مونږ كله ورغلو .

فاذا عليه من اللباس مثل ما على صاحبه . همغه جامه يې وه .

منكس الرأس طويل الصمت فرفع رأسه فنظر الينا ثم قال ان للناس موقفا لا بد ان يقفوه . د ټولو خلكو يو ميقات دی چې خامخا به هلته او دريږي .

قال قلت . دې وايي ما ورته وويل .

بين يدي من رحمك الله؟ دا ميقات او اودريدل د چا مخې ته دی .

قال فشهق شهقةً . دې وايي يو چغه يې د خولې نه لاړه .

فمات . مړ شو .

قال ابن السماك فجاءت العجوز . بوډۍ راغله .



Scanned by CamScanner

فقالت. وي ويل.

قتلتم ابني. زما ځوي مو مړ کړو.

قال فكنت فيمن صلى عليه رَحِمَهُ اللَّهُ. ما يې هم په جنازه کې شرکت وکړو.

ګوري فقط د خالق له ياد سره په هغه مرګ راځي او غشي راځي.

دارنګې الزهد لاحمد بن حنبل جلد ۱ صفحه ۱۷۲: على ابن فضيل له سفيان ابن عيينة سره وه.

فتحدث سفيان بحديث فيه ذكر النار وفي يد علي بن فضيل قرطاس فيه شيء مربوط فشهق شهقة وقع ورمى بالقرطاس او وقع من يده فالتفت اليه سفيان فقال لو علمت انك ها هنا ما حدثت به.

که ما ته پته واي چې علي بن فضيل دلته ناست دي دا حديث به مې نه وه بيان کړې.

فما افاق الا بعد ما شاء الله. څه ډير وخت بعد بيا را په خود شو.

دارنګې حلية الاولياء جلد ٦ صفحه ٣٦ کې د حضرت موسى عَلَيْهِ السَّلَامُ د خالق سره د مناجات او د تکليم څه خبرې ذکر دي موسى عَلَيْهِ السَّلَامُ فرمايي:

استغفر الله من الذنوب حولاً قال الله قد غفرت له فقال رب اذا غفرت لي وافرحت بالمغفرة قلبي واقررت بالمغفرة عيني. او زما زړه دې په مغفرت خوشحال کړو او زما سترګې دې په مغفرت يخې کړې.

لذاذة منطقك مسامعي. او لذت د منطق ستا دننه شو مسامعو زما ته.

نو يو سوال درنه کومه هغه دا چې:

فلا ترني خصمي يوم القيامة. هغه زما خصم ورځ د قيامت کې ما ته مه مخامخ کوه هغه ده نه چې څوک په خطاء سره وژل شوې وه هغه يادوي.

قال يا موسى أجورًا تسألني. اى موسى عَلَيْهِ السَّلَامُ د ظلم سوال رانه کوي ظلم وکړم چې نه يې مخامخ کوم درسره.



Scanned by CamScanner

يأتي ملك الموت يوم القيامة قابضاً على ذقنك حتى تحبثو بين يدي فانتفض موسى عليه السلام.

رب كريم ورته فرمايي اى موسى عليك السلام ملك الموت به په ورځ د قيامت راشي قابضاً على ذقنك دا عجيبه الفاظ دي چې د انبياء سره د مخلوق د حق موافق اګر که دوي نه خطاء شوي ده دا مواخذه نه ده خو عام عباد پرې هيروي خو بيا هم اودروي خوېي ورته کنه خصم خو اودروي نو :

قابضاً على ذقنك حتى تحبثو بين يدي. ملک الموت به قابض وي په ذقن ستا باندې تر دې چې زما مخې ته دې راولي له دې سره.

فانتفض. وربيده موسى عليه السلام.

فغشي عليه سبع ليال. بيهوشي پرې راغله ۷ شپې ۷ ورځې بيهوشه وه ۷ ورځې بعد را بيدار شو جبرائيل عليه السلام ورته راغې :

يا موسى عليه السلام انقطع رجاءك بعد اذ سمعت بالمغفرة. اميد دې قطع کوي مه قطع کوه تاخو د مغفرت سماع کړې ده بښل شوې يې.

فقال ياجبرائيل اليس يقول خصمي يا رب قتلني هذا. آيا زما خصم به بيا نه وايي.

فيقول الله ياموسى عليه السلام قتلته. ما ته به وايي تا قتل کړې دي.

فان قلت لا. که وايم چې نه مې دې قتل کړې.

قال الست شاهدك. ولې زه ګواه نه يم ځه.

وان قلت نعم قال لم قتلته. او که چيرته وايم چې ما قتل کړي بيا به وايي ولې دې وژلي.

فقال موسى عليه السلام أُوه فشهق شهقةً فغشي عليه شهراً.

وايي دې خبرې سره يې له خولې نه د أُوه آواز لاړو بيا يې يوه چغه د خولې نه لاړه بيهوشه شو يو مياشت بيهوشه پروت وه نو دا څه نا څه حالات د خشيت په دې ټولو مبارکانو



Scanned by CamScanner

باندې راغلې دي .

دا رنګې الرقة والبكاء جلد ۱ صفحه ۱۸۰ داد ابن ابي الدنيا تصنيف دي په دې کې مسمع بن عاصم وايي :

**انطلقت انا وعبدالعزيز بن سلمان الى ناشرة بن سعيد الحنفي** . دا يو عابد وه .

**وكان قد بكى** . دومره يې ژړلې وه چې .

**اظلمت عيناه** . د سترګو نظر يې د ژړا د لاسه تللې وه .

**فاستأذنا عليه** . اجازت مو وغوښتلو ور دننه شولو .

**فأذنا لنا فدخلنا عليه فسلم عليه عبدالعزيز فقال له ناشرة** .

ناشرة ورته وويل ته ابو محمد يې .

**قال نعم** . هغه وويل : هاو .

**قال ما جاء بك** . څه شي راوستې .

**قال جئنا لتبكي ونبكي معك** .

دې ته راغلي يو چې ته هم وژاړې مونږ هم درسره وژاړو .

**على ما تقدم من سالف الذنوب قال فشهق شهقةً** . د ناشرة له خولې نه چغه لاړه .

**خر مغشياً عليه** . بيهوشه پريوتلو .

**وجلس عبدالعزيز يبكي عند رأسه** . **وتنادي** . چغې وهلې .

**اهله** . اهل دده .

**فجعلوا يبكون** . هغوي راغلل هغوي هم ژړل .

**حوله** . ګرد چاپيره له هغه نه په داسې حال کې .

**وهو صريع بينهم** . چې دې يې په مينځ کې مړ پروت وه دا ناشرة دې چغې سره مړ شوې وه مينځ کې پروت وه .

**فلما رأيت البكاء قد كثر** . ما چې ژړا وليده چې زياته شوه .



Scanned by CamScanner

انسللت فخرجت . په شا وخرخيدم ترې را بهر شومه .

دارنګې جامع الاحاديث جلد ۲۷ صفحه ۱۶۵ د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دي :

قال خدمت عمر خدمةً لم يخدمها احد من اهل بيته . ما د عمرِ فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ داسې خدمت کړي چې اهل بيتو کې به يې چا نه وي کړې .

ولطفت به لطفا لم يلطفه احدا من اهله . خاصو وختونو کې به ورتلم چې هيڅوک به نه وه .

فخلوت به ذات يوم . يوه ورځ ورغلم ځان ته .

في بيته وكان يجلسني ويكرمني . زه به يې ځان سره کينولم زما به يې عزت کولو .

فشهق شهقة ظننت ان نفسه سوف تخرج منها . وايي د عمرِ فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ له خولې نه يوه چغه لاړه ما ګمان کوه چې کيدې شي ساه يې وخيژي يعنې روح ترې نه لاړ شي داسې چغه ترې نه لاړه .

دارنګې اعتلال القلوب للخرائطي جلد ۱ صفحه ۲۹۲ جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ عرض کوي :

فقال يا محمد ان ربك عزوجل يقرأك السلام ويقول لك لو أن عبدي لقيني بقراب الارض خطيئة لقيته بقرابها مغفرة .

که زما بنده دا تړوله ځمکه ډکه کړي له ګناه نه دومره ډيره ګناه يې وي په مغفرت به ورسره ملاقي شمه .

قال فاعلمه النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذلك قال فصاح صيحة .

دا واقعه اوږده ده ما اختصار کړې داد ثعلبة بن عبدالرحمن انصاري ده هغه مشهوره واقعه ده چې رؤيت د يوې زنانه يې کړې وه بيا دې تللې وه دشتې ته او هلته به يې چغې وهلې او ژړلې به يې نه خوړه نو جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ راغې چې خدای تعالی فرمايي چې زما بنده بقراب الارض خطئ کړې وي زه به مغفرت ورته همدغو نه زيات وکړمه.

نو فاعلمه النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ داد هُ ضمير راجع دي ثعلبة بن انصاري ته نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ هغه پوهه کړو چې بخښنه درته کيږي او داسې جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ راغې .

قال فصاح صيحة فمات . هغه چغه و وهله مړ شو .

فامر رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بغسله وكفنه فلما صلى عليه جعل يمشي على اطراف أنامله . د خپو ګوتي لګولي .

فلما دفنه قيل له يا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رأيناك تمشي على أطراف أناملك قال والذي بعثني بالحق ما قدرت ان اضع قدمي على الارض من كثرة من نزل من الملائكة لتشييعه . ډومره فرشتې راغلې وې .

دا رنګې الزهد والرقائق للخطيب البغدادي جلد ۱ صفحه ۱۳۹ دي کې يو محدث دي مالک بن دينار ته ځي نو هغه محدث ته مالک بن دينار ځان ښايي چې زه مالک بن دينار يمه:

قال بخ بخ أبا يحيى ان كنت كما يقولون انت الذي يزعم هؤلاء انك ازهدهم أجلس . دا خلک وايي چې ته په ټولو کې ازهد يې کينه کينم درسره .

فالان تمت امنيتي على ربي في عاجل الدنيا . دا محدث صالح نوميږي .

قال صالح فقمت اليه لأسلم عليه فاقبل على القوم فقال انظروا كيف تكونون غداً بين يدي الله في مجمع القيامة .

سوچ وکړي چې د خدای تعالی په وړاندې به مو څه حال وي .

قال فسلمت عليه فرد علي وقال من انت يرحمك الله ؟ فقلت انا صالح المري قال انت الفتى القارئ أنت أبو بشر ؟ قلت نعم .

قال اقرأ . لږ تلاوت راته وکړه .

يا صالح فلقد كنتُ أحب أن أسمع قراءتك قال صالح فحضرني والله ما كنت قد فقدته فابتدأت . هغه سور ياد وې چې ما ته را ياد شول .

فقرأت فما استتمت . ما لا اعوذ بالله خلاصه کړې نه وه نور تلاوت پريږده اعوذ بالله مې لا خلاصه کړې نه وه .

حتى خر . چې پريوتلو مالک بن دينار .



Scanned by CamScanner

مغشياً عليه ثم افاق افاقة . بيا را بيدار شو .

فقال عد في قراءتك يا صالح فاني لم اقطع نفسي منها وربما قال صالح ورأيت شيئاً عجيباً لم أره من أحد المتعبدين كان اذا سمع القرآن فتح فاه قال فعدت فقرأت ﴿ وَقَدِمْنَا إِلَىٰ مَا عَمِلُوا مِنْ عَمَلٍ فَجَعَلْنَاهُ هَبَاءً مَّنثُورًا ﴾ قال فصاح صيحة . چغه يې ووهله .

ثم انكب لوجهه . پر مخه پريوتلو .

وانكشف بعض جسده فجعل يخور كما يخور الثور . كورم چې د مري نه يې داسې آواز راځي لکه څنګه چې غوائي حلالولي شي او آواز کوي .

ثم هدأ فدنونا منه . لږ آرام شو مونږ ورنيزدې شو .

ننظر فاذا هو قد خرجت نفسه كأنه خشبة . روح ترې وتلې وه يخ كرخ پروت وه مالک بن دينار .

قال فخرجنا فسألنا هل له احد ؟ څوک يې شته که نه ؟

قالوا عجوز . يوه بوډۍ وه هغه دده خدمت كوي .

فبعثنا اليها فجاءت فقالت ما له . هغه راغله وايي څه چل پرې شوې .

قلنا قرئ عليه القرآن فمات . د قرآن كريم تلاوت ورته وشو بس مړ شو .

قالت حق والله من ذا الذي قرأ عليه . دا چا پرې تلاوت وكړو .

ولعله صالح القارئ . دا به صالح المري وي .

هو الذي قرأ عليه ؟ قلنا نعم . مونږ ورته وويل هاو .

وما يدريك من صالح ؟ ته چا پوهه كړې صالح څوک دي .

قالت لا اعرفه . هغې وويل صالح نه پيژنم .

غير اني كثيرا ما كنت اسمعه يقول ان قرأ علي صالح قتلني . كه صالح المُري راته تلاوت وكړو نو مړ به مې كړې واي .



Scanned by CamScanner

ده به دا خبره ډيره کوله دا چې تلاوت وشو مړ دې دا به صالح المري تلاوت ورته کړې وي .

نو داسې حالات په دوي راغلي وه او مالک بن دينار د زمانې غټ بادشاه تير شوی وه ، په منتهاء کې بيا دا حال دده شو .

اول ځل يې چې بادشاهي پريښنو دله نو د پريښنو دلو هغه وجه يې دا وه چې بادشاهي هال کې ناست وه يو ملنګ ورته راغلي وه هغه ملنګ ورته آواز کوي چې اجازت دي يوه خبره کومه وايي وکړه وايي سراي مې ورک کړې سراي دادې پخوا به خلکو سرای کې شپې کولې مسافرو کمري به په کې وي نو هغه خادمانو يې بې عزته کړو ملنګ يې وشړه صبا بيا راغې وايي لار رانه ورکه ده هغه سراي دادی بيا يې وشړه نو چې په دريمه ورځ راغې بادشاه پوهه شو وايي شړي يې مه را يې ولې ځان سره يې کينوه وايي ملنګه ولې زما سپکاوي کوي دا خو زما د بادشاهي هال دي وايي داد کوم وخت نه ته دلته يې مخکې څوک وه وايي پلار او نيکه دا شجره يې تيره کړه .

وايي ته به تر قيامته دلته يې وايي نه بيا به بل څوک وي وايي څو مره خلک چې په کوم ځای بد ليږي رابدليږي همغې ته سراي وايي کنه دا سراي دي .

بس دې نه ده عبرت واخيستلو زړه يې خفه شو وزيران يې راغوښته کړل وايي چې څو ورځې که زه سرکاري ډيوټي ته رانغلمه نو ما مه چيړي خپل کار روان ساتي دې ترې لاړو چې لاړ څنګه چې کور ته ننوتلو هلته دده وينځه وه دده په کټ کې پرته وه چوکه يې را واخيسته يو دري چوکي يې ووهله ځکه وينځه خو خلکو ډيره سپکه ګڼله بيا د بادشاه په کټ کې هغې وژړل ژړا نه بعد يې بيا وخندل وايي ولې دې وژړل وايي په دې چوکو دې رووهلم خوړه شومه وايي ولې دې وخندل وايي خندا ستا په حال راځي چې ما دري منټه په کې تير کړل نو دري چوکې مې وخوړلې څوک چې په کې شپې ورځې دې کټ کې تيروي هغه به څومره چوکي خوري په قبر کې او په ورځ د قيامت کې .

بس دې خبرې نور هم په سوچ کې کړو هلته د ملنګ خبره دلته دا خبره بس يوه شپه يې په کې سوچ وکړو صبا يې ځامن راغوښته کړل وايي چې زه نوره بادشاهي نه کومه زه درنه ځمه چې هر خوا لاړم ما پسې به ګرځي هم نه .



Scanned by CamScanner

بیا دې ترې نه روان شو یو یې جام ځان سره واخیسته یو یې بالبنت ځان سره واخیسته سم د خدای دوستي پسې بهر شو په لاره روان دي یو شپونکي ګوري چې او به څکي په لپه باندې هغه جام یې هم شپون ته ورکړو وایي ما سره خپل جام شته دي.

بیا سترې شو یوې ونې لاندې اوده شو هلته هم یو شپونکي پروت دي دا خپل څنګل یې سر ته ایښي واي بالبنت خو هم له ما سره شته دي په دې بالبنت څه کوم هغه یې هم شپونکي ته ورکړو نو بیا همداسې تش لاړو بیا دا خپل رعیت کې لري علاقه کې چې دده نوم یې پیژندلو او دې یې نه پیژندلو دیو چا د انارو باغ وه هغې کې مزدور شو عبادت به یې کولو نو یو کال یې دې باغ کې تیر کړو یا دوه کاله.

د باغ د مالک میلمانه راغله وایي ورشه انار راوشکوه نو دې لاړ چې انار یې ر اوشکول انار تروش وه بیا یې ولیکه چې بیا یې راوړه بیا تروش وه نو غصه شو ورته وایي ته انار نه پیژني اول یې مات کړه وي ګوره بیا یې راوړه.

په دریم ځل یې صحیح انار راوړه نو بیا ورته هغه د باغ مالک وویل چې ته ولې انار نه پیژني وایي زه راغلي یمه کال دوه کیږي ستا د باغ انار ما نه دي خوړلي چې ددې خوند څنګه دي زه څه پوهیږم خو چې تا وویل وي څکه ومي څکل رامې وړل وایي ته خو ډیر پاک سړي یې تا ته به زه دوه چنده تنخواه درکومه د نورو مزدورانو نه هغه ورته وویل چې دوه چنده تنخواه راکوي زه دا مزدوري نه کومه زه درنه لاړمه وایي چې ولې وایي چې زما له وجې نه ته په ګناه کې اخته کیږي بس زه لاړمه درنه.

لاړو حرم شریف ته نو دې خپله حکایت کوي چې زه کله حرم ته لاړمه او دا اول طواف مې کوه نو دې اول طواف کې طواف مې لا شروع کړې نه دي په دې لاره یمه حرم نزدې شوې دي لبیك اللهم لبیك زه هم دا وایمه دا آواز کومه او یو بل ځوان راسره دي احرام یې تړلې هغه هم دا آواز کوي ډیر خلک نور روان دي.

نو غائب آواز د کعبې لخوا نه راشي چې لا لبیك نو مالک بن دینار ؒ وایي چې زه دې ته ډیر متوجه شوم لکه چې دا آواز تا ته کیږي وایي زما خوا کې دې ځوان راته وویل چې خفه کیږه مه دا آواز تا ته نه ما ته کیږي وایي ما ورته وویل چې تا ته ولې کیږي.



Scanned by CamScanner

وايي پوهېږم نه دا ۱۱ کال دي چې راځمه حج ته او په دې هر کال ما ته د لا لبيك آواز کېږي نو هيڅ نه پوهېږم چې ما کې څه جرم دي خو دا آواز ما ته دې ته خفه نه شي وايي ما ورته ووېل چې تا ته د لا لبيك آواز کېږي نو بيا څه شي کوي دلته خو بيا څه ترې نه کنه چيره بل خوا لاړ شه وايي دې څوان ما ته ووېل چې ته د خالق د در نه بل در ما ته وښايه چې دا څوک وشي نو يو بل دردي هغې ته لاړ شي .

نو د ځوان دغه يوه خبره وايي د خالق خوښه شوله چې هرې گناه باندې نيولې وه ۱۱ حجونو باندې نه وه معاف کړي خو دا يوه خبره چې د خالق له در نه سوا بل در نشته او که زه دا پرېږدم چيرته به لاړ شم دا خبره د خالق خوښه شوله په دغه خبره يې ورته بخښنه وکړه .

مالک بن دينار وايي چې دا يوې خبرې سره دې ځوان له خولې نه يوه چغه لاړه او پريوتلو چې ما واي وکتلو نو مړ وه بيا نو دې قصه کوي وايي چې کله دده جنازه په حرم شريف کې کيدله وايي عام خلک نه وايم يو لاک اولياء دده جنازې ته جمع شوې وه چې دا صرف په دې يوه خبره چې د خالق در نه سوا بل در نشته دي چې هلته بخشش ميلاو شي په دغه يوه خبره باندې دده گناه هم معاف شوه او دې د ولايت داسې مقام ته ورسيدلو چې خداى تعالى د ځمکې اولياء ماموره کړه په دې باندې چې ددې شخص جنازې ته ځان ورسوي .

په دې کې يوه طولاني واقعه بله ما په کتاب کې کتلې وه چې په هغې کې د يو ولي ذکر کوي چې ما د عراق په سختو غرونو يو ځاى کې د يو ولي ملاقات کړي وه وايي چې کله دې جنازې ته راغلمه وايي گورم هغه هم دلته حاضر وه نو بعضې به په کراماتو رارسيدلې وي داد مالک بن دينار د ژوند مختصر حالات وه .

دارنگې حلية الاولياء جلد ۸ صفحه ۲۹۳ د فتح الموصلي واقعه بيانوي : عثمان بن عمارة چې د سالم الدورقي په دوکان کې فتح الموصلي ناست وه زه راغلمه .

**فقال لي يا بصري أي شيء رأيت في غيبتك .**

ته خو نه وې ډير وخت څه دې ليدلي .

**فقلت رأيت عجائب كثيرة واخباراً مختلفة فصاح صيحة .** چغه يې ووهله .



Scanned by CamScanner

فقلت انت تصيح من الخبر فكيف لو شاهدت القيامة او شاهدت صاحب القيامة فشهق شهقة . يوه چغه يې ووهله .

ووثب من الحانوت . او د دوکان برنده وه له هغې نه يې ټوپ کړل .

فخر مغشياً عليه . بيهوشه پريوتلو . فحملناه فادخلناه الحانوت فمازال مغشياً عليه الى العصر فلما صلينا العصر تنفس ثم فتح عينيه .

د صحابه کرامو د غشي او د غه شان حالات ډير زيات دي .

د ترمذي په دويم جلد کې د حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حالات ذکر کړي دي شاګرد ورته وايي داسې حديث راته بيان کړه چې تا د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه اوريدلې وي هغه د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ روضې خوا کې ناست دي دا الفاظ وايي :

سمعت من خليلي . چې ښکلی خليل کوي .

شهق شهقة خر مغشياً عليه . بس د خولي نه يې چغه لاړه بيهوشه پريوتلو .

د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د غه د خليل ټکي ويلو باندې بيهوشه شو بيا را په خود شو .

بيا يې ويل چې ما د خپل خليل نه اوريدلي چې ښکلی دا خليل وايي بيهوشي ورباندې راغي او چغه يې د خولې نه ځي بيا را په خود شو .

په دريمه دفعه باندې د ومره نسبت کوي چې صاحب ددې روضې خليل نه مې اوريدلي بيا پرې بيهوشي راغله د دريم ځل بيهوشي نه بعد هغه بيا شاګرد ته حديث بيان کړې دي .

ترمذي دويم جلد دا حديث ذکر کړي دي نو حالات د غشي په صحابه کرامو باندې ډير زيات وه .

## المبحث الخامس :

بحث خامس دې کې د چند فقهاو نصوص او عبارات د وجد متعلق دي او په آخره کې په مانځه کې د چغو د فقهاو څه نصوص دي .

سيوطي رَحِمَهُ اللهُ په الحاوي للفتاوى جلد ۲ صفحه ۲۲۲ کې يوه رساله ليکلي ده :

مسألة في جماعة صوفية اجتمعوا . چې را غونډ دي .



Scanned by CamScanner

في مجلس ذكر . په مجلس د ذکر کې .

ثم ان شخصاً من الجماعة قام من المجلس . له دې ډلې نه يو شخص اودريږي .

ذاكراً . ذکر کوي په ولاړه .

واستمر على ذلك . او په دې ولاړه هم داسې وي وي ولي .

لوارد حصل له .

مخکې د وجد معنی مونږ کړې وه لوارد حصل له څه ورود ورته د انوارو شوې يې .

فهل له فعل ذلك . جائز دي ده ته دا کار کول .

سواء كان باختياره ام لا . دا کار په خپل اختيار کوي او که بې اختياره يې کوي تواجد يادوي .

و هل لاحد منعه وزجره عن ذلك ؟ خلکو ته له دې نه منع په کار ده او زجر .

الجواب : لا انكار عليه في ذلك . په دې صوفي باندې دې کار کې څه انکار نشته .

وقد سئل عن هذا السؤال بعينه شيخ الاسلام سراج الدين البلقيني .
دغه سوال بعينه له شيخ الاسلام سراج الدين البلقيني نه هم شوې وه .

فاجاب . هغه جواب ورکړو .

بانه لا انكار عليه في ذلك وليس لمانع التعدي بمنعه .
منع کوونکي لره تجاوز دده په منع نه دي په کار .

ويلزم المتعدي بذلك التعزير .
چا چې دوي منع کړل د ذکر د مجلس نه په مساجدو کې نو متعدي ته تعزير په کار دي .
دارنګې سوال شوې وه د علامه برهان الدين الابناسي نه :

فاجاب بمثل ذلك وزاد ان صاحب الحال مغلوب والمنكر محروم .

حال والا مغلوب دي منکر يې محروم دي .

ماذاق لذة التواجد . د تواجد خوند يې نه دي څکلي .



Scanned by CamScanner

ولا صفاله المشروب .

او ده ته شراب د مینې نه دي صفا شوې .

الى ان قال في اخر جوابه بالجملة فالسلامة . سلامتي ده د ایمان .

في تسليم حال القوم . په دې کې ده چې ددې قوم حال تسلیم کړې شي .

واجاب ايضاً بمثل ذلك بعض ائمة الحنفية والمالكية كلهم كتبوا على هذا السؤال بالموافقة من غير مخالفة .

ټول موافق دي په دې کې .

اوس دې خپل جواب کوي :

اقول : وكيف ينكر الذكر قائماً .

څنګه انکار کوي يو سړي د ولاړې ذکر نه .

والقيام ذاكراً . يا ذکر کوي په ولاړه .

وقد قال الله تعالى الذين يذكرون الله قياماً وقعوداً وعلى جنوبهم .

وقالت عائشة رَضِيَ اللّٰهُ عَنهَا كان النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ يذكر الله على كل احيانه .

نو دې کې هر وخت راغې .

اوس وايي :

وان انضم الى هذا القيام رقص .

اِن وصلي دي اګر که ضم شي له دې قيام سره ، رقص رقص ذکر کوي په ولاړه او په کې رقص شروع کړي .

او نحوه . يا مثل د رقص دوران وغیره .

فلا انكار عليهم . نشته انکار په دوي .

فذلك . دا حال .

من لذات الشهود او المواجيد وقد ورد في الحديث رقص جعفر بن أبي طالب بين يدي النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لما قال له أشبهت خلقي و خلقي وذلك من لذة هذا الخطاب ولم ينكر ذلك عليه النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فكان هذا اصلاً في رقص الصوفية .

دا دليل شو په رقص د صوفيه وو كې .

لما يدركونه من لذات المواجيد . ځكه خوند دوي حِس كوي .

وقد صح القيام . صحيح ده او درېدل .

والرقص في مجالس الذكر والسماع . سماع اشعارو لروه دا ثابت دي .

عن جماعة من كبار الأئمة منهم شيخ الامام عز الدين بن عبدالسلام .

دا رنګې د فقه کتابونو نه مراقي الفلاح جلد ١ صفحه ٢١٥ د مجمع الانهر نه نقل كوي.

وفي مجمع الانهر عن التسهيل الوجد مراتب . د وجد اقسام دي .

وبعضه يسلب الاختيار . بعضې اختيار سلبوي .

فلا وجه لمطلق الانكار . يواځې انكار ته هيڅ لاره نشته ده .

وفي التتارخانية مايدل . په فتاوى تتارخانيه كې دا شته دليل ددې دي .

على جوازه للمغلوب . چې دا وجد جائز دي هغې مغلوب لره .

حركاته كحركات المرتعش . چې و ګرځي حركات دده په شان د حركاتو د مرتعش ګوزنه وهلي بې اختياره شي .

مجمع الانهر في شرح ملتقي الابحر جلد ٨ صفحه ٢٠٥ :

و في التسهيل في الوجد مراتب و بعضه يسلب الاختيار فلا وجه للانكار بلا تفصيل .

حلية الاولياء جلد ١٠ صفحه ٢٠٥ كې د جنيد بغدادي حالات ذكر كوي :

سمعت عثمان بن محمد العثماني يقول سمعت حكيم بن محمد يقول حضر الجنيد ابو القاسم موضعاً . جنيد بغدادي يو ځاى ته راغې ،



Scanned by CamScanner

فيه قوم . هلته يو ډله وه .

يتواجدون على سماع يسمعونه . اشعاريې ويل تواجد شروع وه ورسره .

وهو مطرق . جنيد بغدادي سر ټيټ کړې وه .

قيل يا ابا القاسم تراك تتحرك . جنيد بغدادي سر ټيټ کړې وه خوزيدو چا ورته وويل ولې خوزيږې .

قال . هغه جواب ورکړو .

﴿ وَتَرَى الْجِبَالَ تَحْسَبُهَا جَامِدَةً وَهِيَ تَمُرُّ مَرَّ السَّحَابِ ﴾
د خدای تعالی پرتاو د هغه قدرت او د هغه د خوف له وجې نه دا غټ غټ غرونه به ورځ د قيامت کې ته به ګوري چې روان به وي .
په آخره کې په مانځه کې بعضې صياح او چغې چې غيرِ اختياري وي او يا اختياري وي خو د هغې نه صوت جوړ نه شي دليل د کثرت خشوع دي مفسد للصلاة نه دي .

الجامع الصغير د عبد الحي لکهنوي جلد ۱ صفحه ۹۲ باب ما يفسد الصلاة وما لا يفسدها:

محمد عن يعقوب عن ابي حنيفة . د امام صاحب قول .

في رجل انّ في الصلاة انّ دآنين . ده آواز وکړي .

او تأوه . يا أه أه وکړي .

او بكى . يا وژاړي .

فارتفع بكاؤه . پورته شي ژړا دده .

قال ان كان من ذكر الجنة او النار لم يقطعها . د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللَّهُ فتوى ده دا نه فاسدوي مونځ که د جنت او د جهنم له ياد نه وي .

وان كان من وجع او مصيبة قطعها .

همدا عبارت الجوهرة النية جلد ۱ صفحه ۲۵۹ ، العناية شرح الهداية جلد ۲ صفحه ۱۳۱ ، المحيط د علامه برهاني جلد ۲ صفحه ۷۲ ، الهداية شرح البداية جلد ۱ صفحه ۶۱ ،



Scanned by CamScanner

تحفة الفقهاء جلد ۱ صفحه ۲۲۱، فتح القدير جلد ۲ صفحه ۲۷۹، الاختيار لتعليل المختار جلد ۱ صفحه ۶۸، دې ټولو د غه عبارت ذکر کړې دي.

دا مسئله د وجد وه مطلقِ انکار لره څه نشته دي حال د دغه قوم دي تسليم شي او د صوفيه وو د پاره آخره کې دا ترغيبي خبرې کومه چې هغوي دې له دې نه سشن نه جوړوي او د قصداً حرکاتو نه دې انتهائي ځان وساتي او غيرِ اختياري که صياح يا څه حال ورته راشي هغه دې نعمت وګڼي لکه حديقة الندية کې د عبدالغني نابلسي رَحِمَهُ اللهُ تصريح داده دا وجد او تواجد چې کوم دي:

نور و هداية و اثر توفيق من الله تعالى.

**سوال:** تواجد جائز دي او که نه؟

**الجواب:** دا خبره مخکې ما درته وکړه چې قصداً حرکاتو نه ځان وساتي که کوم ځايونو کې شوې دي.

عوارف المعارف کې علامه سمهودي ليکلي دي چې مسجد نه وي د شيخ په حضرت کې نه وي ځان ته په يو ځای کې که تشبه د واجدينو سره څه عمل دې وکړي چې زه د هغه سره مشابه شمه نو هغې د پاره بعضې فقهاو جواز ورکړې دي ټول پرې متفق نه دي.

شامي جلد ۳ صفحه ۳۰۸ د وجد متعلق ليکي:

التحقيق القاطع للنزاع في امر الرقص والسماع يستدعى تفصيلاً.

چې علامه سمهودي په عوارف المعارف او امام غزالي په احياء العلوم کې ذکر کړې دي بيا وايي يو شعر را اخلي:

ما في التواجد إن حققت من جرح ولا التمائل ان اخلصت من بأس

نشته تواجد کې که ثابت څه جرحه او نه ميلان يو خوا بل خوا چې کله خالص د تشبه لپاره وي څه باک. بعضو نسخو کې من حرج لفظ دی.

فقمت تسعي على رجل وحق لمن دعاه مولاه ان يسعى على الرأس.

ته خو لا منډه په يوه خپه باندي وهي په کار دادی چې الله لره په سر منډي ور ووهي يعنې سر کونډي ورته واړوي.



Scanned by CamScanner

حديقة الندية صفحه ۵۲۴ کې ذکر کوي :

رأيت في حق فقراء الصوفية . د صوفيه وو باره کې مې ډير څه ليدلي دي .

وجدت الناس يتكلمون فيهم بانواع الكلام . خلک په کې عجيبه عجيبه خبرې کوي .

فان ذلك كله حسد و بغض وحقد وظنون سيئة و اوهام شيطانية .

صوفيه وو کې چې څوک خبرې کوي دا حسد دي بغض دي او بدګمانونه او اوهام شيطاني دي .

استولت على قلوب غالب الناس من شدة الغفلة و استيلاء الجهل والغرور .

چې دا را غالب شوې دي په زړونو د غالب الناس باندې وايي ځکه دوي ډير غافله دي او ډير ناپوهه دي .

وكثرة الافتراء . او افتراء هم دوي کې زياته شوې ده نو وايي .

فان طريق الوجد والتواجد الذي تعلمه الفقراء الصادقون في هذه الزمان .

وجد او تواجد چې تعليم يې فقراء صادقين ورکوي دې زمانه کې .

كما كان يعلمون من قبل في زمان الماضي نور و هداية و اثر التوفيق من الله و عنايته .

بيا وروسته روايت ذکر کوي :

قال المناوي في طبقات الاولياء في ترجمة الشيخ ابراهيم الدسوقي انه لقيت الجنيد انه قوم يتواجدون ويتمايلون . يو قوم دي تواجد کوي او ميلان يو خوا بل خوا کوي .

فقال دعوهم مع الله . پريږده له خدای سره .

يفرحون . دوي خوشحاله دي . فانهم قوم . داسې قوم دي .

قطعت الطريقة اكبادهم . چې لارې د سفر د ولايت ورته دا خپل جيګرونه پرې کړې دي .

وخرق نصب فؤادهم . او غشو د محبت يې زړونه څيري کړي .

وضاقوا ذرعاً استعداد کنبدي فلا حرج عليهم اذا تنفسوا مداومة حالهم ولو ذقت مذاقهم که تا ددې حال وڅکه .



Scanned by CamScanner

عذرتهم . معذور به وګڼي دوي . في صياحهم . په چغو کې .

وشق ثيابهم . په شکولو د جامو کې .

د جامو شلولو باره کې چې غير اختياري وي دا خو هسې هم معذور دي د تواجد په صورت کې که چا وکړل ناجائز دي حرام دي اسراف دي ده کې بيا د ډيرو اولياو حالات په دغه صفحه ذکر کوي .

وروسته وايي :

وهي حالة شريفة . وجد حالت شريفه دي ، علامه د صحت يې داده :

ان تحفظ على صاحب اوقات الصلاة .

چې دا چا باندې جذب راځي دا مونځونه په وخت کوي او که نه يې کوي که په وخت يې کول دا يې علامه د صحت ده .

و سائر الفرائض فيرد عليهم فيها عقولهم .

د مانځه په وخت کې عقل پرې ځای ته راشي .

بيا وروسته وايي :

وهذا حال جماعة من اولياء الله . دا د يو ډلې د اولياو حال دي .

منهم ابوبکر الشبلي وابو الحسن الاشعري شمعون المحب وامثالهم .

په دغه کسانو باندې به دا راتلل .

نو خپلو سيفي ورونو ته زما دا نصيحت او د خير خواهي خبرې دي چې نن صبا زمونږ بعضې سيفي ورونه طريقې نه جذب جوړ کړې دي هغوي وايي چې ګنې طريقه جذب ته وايي بس هغه په مجلس کې بل کار نشته دي همدغه جذبونه او که څوک جذب وي او جذب په چا راځي هغه ته توجه کيږي او که جذب پرې نه راځي له سره ورته توجه نه کوي سره ورته اهميت نه ورکوي سره ورته هغه صوفي نه ښکاري نو حال دغسې خو نه دي کنه چې خامخا په هر چا به راځي يا به دا دائمي حال وي کله به وي کله به نه وي يو چا ته به دائم پيښيږي يو سړي ته به ټول عمر کې هم نه پيښيږي .



Scanned by CamScanner

نن صبا زمونږ سیفي ورونه هغوي مسئله د وجد کې داسې ور خوا یږه شوي چې هغوي طریقه نقشبندیه او د خدای تعالی دوستي او دا اوراد دا اذکار دا هره لاره د نقشبندانو نه یې عبارت جذب جوړ کړې دي چې دا ټوله طریقه جذب ته وایي دا خو نه ده دا خو ته غلط فهم ورکوي خپل سالک ته طریقه خو څه جذب ته نه وایي او نه دغه شئ دي. او یا چې په چا راغې بزرګ دي او که په چا رانغې نو کافر شو ما باندې په خپله زندګي حیات کې یو ځل یو حال راغلې دي هغه هم داسې چې تقریباً نیم ساعت د باړي حضرت صاحب هغه په یو ساه توجه کوله راته نو زه داسې شومه چې ما وویل چې دا دنیا ما باندې وګرځیدله نو زه غورځیدمه چې غورځیدمه ما په لاسونو ځان را ټینګ کړو ونه غورځیدم کیناستمه.

نو بیا دغه مجلس وه چې د باړي حضرت صاحب زمونږ. والد صاحب ته وویل چې دا ځوی د کور نه او باسه علم پسې اوداډیر بنه استعداد لري او د نابغه کوم لقب چې هغوي ما ته راکړې وه هغه یې دغه ځای کې راکړو راته نو یو ځل زندګي کې ما باندې دا حال راغلې دي باقي په خوب کې په کراتو کراتو راباندې راغلې دي.

**سوال**: بعضې خلک وایي چې د باړي حضرت صاحب نوم یاد شي د باړي پیر صاحب مریدان ژاړي او چې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نوم یاد شي بیا نه ژاړي؟

**الجواب**: نو تا خو نه د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نوم سره وژړل او نه دې د یو ولي نوم سره وژړل هغوي خو بیا هم بنه دي د ولي نوم سره خو ژاړي:

عند الذکر اولیاء الرحمن تنزل الرحمة.

علامه قشیري ذکر کوي چې کله د اولیاء ذکر کیږي د الله رحمت وریږي.

او پاتې شوه دا چې بعضې صوفي باندې دلته د خپل شیخ په تعریفاتو کې چغې زیاتې وي بعضو باندې په نعت کې زیاتې وي بعضو باندې به په تلاوت کې وي دا فناءات دي د صوفیه وو اصطلاحات دي اکثر خلک پرې نه پوهیږي.

کله څوک فنا في الشیخ کې وي کله فنا في الرسول کې وي کله فنا في الله کې وي مونږ او تاسو کې اوس کوم سړي په فنا في الله کې دي بطور مثال اوس که یو نعت خوان نعت شروع کړي نو یو به هم تنګ نه وي بنه به خوشحاله یاستي او که یو قاري تلاوت شروع کړي نو ټول به ساړه پاړه ناست یې اوس دا معنی نه ده چې تلاوت به ستاسو خوښ نه وي خو هغه



Scanned by CamScanner

اخذ د قرآن کریم د تلاوت د فیض د اخذ استعداد لا نه دي جوړ چې نه دي جوړ هلته تنګي سرې باندې نوره راشي او نعت سره نه تنکیږي نو دا ددې دلیل نه شو چې ګڼې اوس د نبي عَلَیْهِ السَّلَام یا د هغه اقوال یا د هغه صفت ته مونږ د قرآن کریم نه وخت زیات ورکوو یا مو ورته د قرآن کریم نه زیات په درنده وکتل.

نه دا خلک چې دي د نبي عَلَیْهِ السَّلَام په محبت کې فاني دي د هغه صفات ورباندې ښه لګیږي کله چې فنافي الله ته لاړشي بیا به تلاوت ته نه تنکیږي هغې کې به بیا خوشحاله وي.

دلته به زه (سید محمد ثواب) هغه سوال ذکر کړم چې جنید بغدادي رَحِمَهُ اللَّهُ نه شوې وه:

وسئل ما بال اصحابك اذا سمعوا القرآن لا يتواجدون ولا يتحركون بخلاف ما اذا سمعوا الرباعيات، قال القرآن كلام الله وهو صعب الإدراك، والرباعيات كلام المحبين المخلوقين. (كتاب الكوكب الدرية على الحدائق الوردية ج ١ صفحه ١٨٧)

کیدې شي دا عبارت شیخ صاحب ته معلوم نه وه.

مسئلة د وجد على الصوفية ختمه شوه

